شپږم کال پنځمه ګڼه، پرلپسې ۳۷ ګڼه، صفر – ربیع الاول ۱۴۳۴هق، جنوري ۲۰۱۳م

# شهامت

د امریکایي عسکرو ائتلافونو په افغانستان کې د بوږنوونکو یادونو شاهد وي

پر " مالي " یرغل د څه لپاره ؟

نور څه د ول مصونیت !!!؟

جنګي لګښتونو امریکا ځملوله ! !

په عربو کې (محمد) لومړی نوم ! !

مناقشهٔ شبهاتی درمورد مشارکت در دیموکراسی و پاسخ به آن

د مذاکراتو د بهیر چټکتیا د څه لپاره ؟

حملات علیه ارگان جاسوسی دشمن انتقام از وحشی گری است

څو شیبې د کندهار له مجاهدینو سره ..

# غزل

عبدالعلي " تسل "

داچې ننګونه کاندوننګ پېژنو
اورپکي نه یود حق جنګ پېژنو

دخدای په لاره کې یې نه سپموو
کاڼی اولور ، تبر ، کولنګ پېژنو

بوی دبارودو کې ثواب لټوو
هیره دې نه وي چې لونګ پېژنو

مونږه دمینې باب ترپایه لوستی
دبنګړو کړس دراکټ کړنګ پېژنو

لاسپوڅي نه یومجبوري ده ګرانه
ګڼې له ټولې دنیاڅنګ پېژنو

چې مودمینې له ګودره لاړل
هاچنارونه ړنګ اوبنګ پېژنو

دانقلاب څپو ته ځیر خلک یو
خودبه سپین زړی اوبدرنګ پېژنو

ورسره لوظ دوفامو کړی
موږد سپیڅلووینورنګ پېژنو

چې دزمریومشبه یادیږو
ځکه منزغری اوګړنګ پېژنو

داتڼ ځای مودسنګرغولی ده
دډاله ډنګ دتورې شرنګ پېژنو

چاشین ډالر اوچاسنګرغوره کړ
ډالرخورپېژنوملنګ پېژنو

دلته چازړه اوچاورمیږ وبایلل
تاتارهالبروک ټټاراورنګ پېژنو

(تسله) موږیودنړۍ ماهران
هرسړی نه وهوخشنګ پېژنو

# شهامت

## علمي، کلتوري او اسلامي مجله

شپږم کال پنځمه ګڼه، پرلپسې 37 ګڼه،صفر – ربیع الاول 1434هق، جنوري 2013 م



**دامتیاز خاوند :**
دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

---

**مسؤل مدیر :**
ابو ظهیر

---

**کتنپلاوی :**
شاهد "حقاني" لطیف عزم
حسن "علوي" بلال "وحید"
نعیم "صافی" عابد مجاهد

---

**بیه :**
یوه ګڼه 20 افغانۍ او 30 کلدارې په پاکستان کې

---

**تخنیکي مسؤل :**
زرملوال او حقمل

---


**یادونه**

شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو مسؤلیت په غاړه نه اخلي

## لړلیک

| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|



ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان بریښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم



# دامريكايي عسكرو راتلونكى به افغانستان كې

اوباما په منسوخ او تحريف شوي انجيل دخپل واک ددوهمې دورې له لوړې وروسته ددې لپاره چې دخپلې لفاظۍ پرجادو دامريكا خلكو ته مصنوعي او خيالي شنه بنونه وښيي وويلې: دجنگونو لسيزه پای ته رسيدلې ! او د يوې پياوړې او خوشاله امريكا د جوړولو وخت راغلی !

خو په هم هغو شيبو او ساعتونو کې چې اوباما دلکونو امريکايانو په وړاندې خپله دادجعل اوفريب څخه ډکه وينا اوروله ، دميړانې اوقربانۍ دهيواد پلازمېنې(کابل ) په زړه کې دامريکا په مشرۍ دنامقدس صليبي ائتلاف په پوځي مرکزونو دځوتنو قهرمانو اوزړورو مجاهدينو ملكوتي تكبيرونو او تندريزو بريدونو له امريكا يي اوائتلافي عسكرو كو كارې پورته کولې !اوڅرگنده شوه چې داوباما دا دعوه چې "دجنگونو لسيزه پای ته رسيدلې ! دامريكا دخوشالۍ اوترقۍ لسېزه پيل شوي " څومره حقيقت لري.....؟

البته داوباما پورته ادعاددې حقيقت پخلی کوي چې ازاد اوپه خپلواکۍ مين ولسونه دزورواکۍ په منو نه څملول کېږي ،چې دتېرو يوولس کلو په اوږده موده کې دغريب افغان ولس په ماتولو اوغلامولو کې په عصري جنگي ټېکنالوجۍ دمجهزو امريكايي اوصليبي ځواکونو شكست اوخجالت ددې رڼه بېلگه ده.

دسياسي کتونکو په اند:كه داوباما وينا تشه لفاظي نه وي او پکې له جنگونو څخه دنورستومانه شوي امريكايي ولس دستړو اروااود انځورولو ترڅنگ دامعقوله ستراتېژي هم ځای ولري: چې له دې وروسته امريكا دازادو ولسونو اوخپلواكو هيوادو په كورنيو معاملاتو كې لاسوهلو ته دپای ټکی ږدي، اوپه نړۍ دجبري راج چلولو استعماري ذهنيت له خپلو مغزو باسي ،نو دا به نه يوازې دامريكا لپاره گټورې پايلې ولري بلكې په نوره نړۍ کې به هم دثبات او امنيت له راتلو سره مرسته وكړي.

ولې ښکاره ده په تېرو څلور پنځو لسیزو کې ټوله زمکنۍ کره د امریکا شیطانې پالیسیو سور انګار ګرځولې ، په ملیونو انسانان دامریکا دظالمانه کړو وړو له امله د ډېرو ترینګلو اورترخو شرایطولاندې ژوندته اړدي ، په خاصه تو ګه د یوولسم ستمبر وروسته خو دامریکا په مشرۍ کرغیړن صلیبي ائتلاف د لکونه افغاني او عراقي مسلمانانو په بې رحمانه وژلو لکونه مسلماني کورنۍ دوېر په تغر کینولې.

لنډه داچې دصلیبي اشرباڼو کړي ظلمونه او وحشتونه په ټول بشري تاریخ کې ساری نلري ، او دانساني تاریخ یوداسې نوی توربا ب دی ،چې په لیدویې هرسپېڅلی بشري وجدان او سالم ضمیر شرم احساسوي.

له نیکمرغه چې امریکا ددغه ناروا جنګ له امله خپله دومره شدید اقتصادي ټکانونه خوړلي ،چې په ویر کې یې له ادنی امریکایي نیولې تر ولسمشره ټول دغم مرثیې وایي !

دیته په کتوباید دامریکااستعماري پالیسي جوړوونکې ماغزه اومني چې پر افغانستان تیری اشتباه وه... دیوه موهوم او غیر واقعي بري پوري هیلې تړل.. او په افغانانو د یوه ګوډاګي رژیم غیرحقیقي بهیر جبراً تپل تیروتنه اوناپوهي وه !

اړتیاده چې امریکایان په راتلونکې کې خپلو دغه ډول هیلوته واګې واچوي ، افغانستان کې دخپلو ناکامیو او روسوایو له انجام په عبرت اخستو یوه واقعبینانه تګلاره او دریځ غوره کړي او پخپلو ناکامیواندې دپردې اچولو لپاره نورد وینو تویولو ستراتېژي لغوه او له افغانستانه ژرترژره خپل ټول ځواکونه وباسي.

ښکاره ده چې دلته دامریکاپه میشت عسکرو هغسې دډار اوبزدلۍ روحیه ختلې، کومه چې په ۱۹۷۰ز کې ویت نام کې وه ،چې له ویت نام اوپه خاصه تو ګه له جنوبي ویت نام نه دوتوپرمهال یې داسې بوږنوونکې یادانښتونه او انځورونه پرېښودل چې له امله یې ترننه دامریکا دغرور سرښکته دی.

که بیا هم امریکا دلته ژر یوولس کلنې غمیزې ته دپای ټکی کینښود اوروان جارحیت بې پای ته ونه ورساو ،دشته ځوکونو راتلونکی به یې له ویت نام څخه هم دزیاتو بوږنوونکو انځورونو اویادانښتونو شاهد وي !

اشتیاق

# په عربوکې (محمد) لومړی نوم !!

په رسول الله (ﷺ) "محمد" نوم عبد المطلب کېښود... ابن عباس (رضی الله عنه) روایت کوي :کله چې رسول الله (ﷺ) پیداشو، په اوومه ورځ نیکه (عبدالمطلب) ورباندې عقیقه وکړه او محمد نوم یې پرې کیښود...

له دې څخه وړاندې په عربو کې بل چا "محمد" نوم نه وایښی ... قریشو ته نا اشنا ښکاره شو...دهغوئ څخوتنو راغلل عبدالمطلب ته یې وویل: ابو الحارثه! تا پخپل لمسي یو داسې نوی نوم ایښی چې نه په دې نوم ستا په پلرو اونیکونو کې څوک تېر شوی اونه تراوسه ستا په قوم کې دانوم (محمد) چا ایښی.. ولې دې پرې دخپل پلار یا نیکه نوم کېښنښود ...؟

عبدالمطلب هغوئ ته وویل: زه د دې نوم په ایښودو ارزو اوهیله لرم چې په اسمانونو کې الله (جل جلاله) د دې ماشوم تعریف وکړي... اوپه زمکه کې یې خلک تعریف وکړي...

په دې اړه اصلي خبره داده چې دانوم(محمد)الله (جل جلاله) دعبدالمطلب په زړه کې اچولی و کله چې د رسول الله (ﷺ)نیکمرغه زوکړه وشوه ، نوپه دې نوم یې ونوماو.

په "خصایص صغری" کې د رسول الله (ﷺ) دا خصوصیت شته چې د (محمد)نوم دالله (جل جلاله) له سپېڅلې نوم اخستل شوی دی ، دغه راز دا څانګړتیا یې هم راغلې چې په رسول الله (ﷺ) باندې اول احمد نوم ایښودل شوی ، په احمد نامه هم له رسول الله (ﷺ) څخه وړاندې څوک نه و نومول شوی ... د رسول الله (ﷺ) په محمد نامه کې کثرت دی یعنې محمد هغه چاته ویل کېږي چې دهغه بیا ، بیا تعریف کېږي...

دیوه روایت له مخې: په رسول الله (ﷺ) باندې دعقیقې په ورځ محمد نوم ایښودل شوی ، اوښکاره ده چې عقیقه یې په اوومه ورځ شوې ...خوله دې څخه نه جوتیږي چې نوم پرې په اوومه ایښودل شوی ... بلکې مطلب دادی چې دزیږدو په ورځ ورته دانوم (محمد)غوره شوی ،دعقیقې په ورځ خلکوته څرګند شوی...

په دې اړه یوبل روایت هم شته چې عبد المطلب په رسول الله (ﷺ) دمحمد نوم ایښودو باره کې داسې خوب لیدلی و... چې له ملا څخه یې د ړڼا یوه داسې وړانګه وځي ،چې دهغې یو سر په زمکه اوبل یې په اسمان دی

... د رڼا د ورانګې یو سر په مشرق بل یې په مغرب دی ... بیا ترې یوه ونه جوړه شوه ، چې په هره پاڼه یې نور ځلیږ ، د مشرق او مغرب خلک ورپورې نښتي وه...

عبدالمطلب دا خوب خلکو ته ووایه ،
خلکو یې ورته داتعبیر وکړ : چې ستا له شانه به داسې څوک پیدا شي چې دهغه به په مشرق او مغرب کې خلک پیروي کوي ... په ځمکه او اسمانو کې به یې تعریفونه کیږي ... هغه و کله چې رسول الله ( ﷺ ) پیدا شو عبد المطلب ورباندې محمد نوم کیښود...

یو ځل یوه میرمن رسول الله ( ﷺ ) ته راغله وې ویلې : دالله رسوله ! ځما هیڅ ماشوم ژوندی نه پاتې کیږي...




رسول الله ( ﷺ ) ورته وفرمایل: ته په نوم دالله ( جل جلاله ) پرېکړه وکړه که داځل درته الله ( جل جلاله ) ماشوم درکړ، په هغه به نوم محمد کیږدې ... هغې هم داسې پرېکړه وکړه ، په نتیجه کې یې ماشوم ژوندی پاتې شو...

داپه عربو کې دود وه چې هر کله به یې کوم سړي ته احترام ورکاوه،هغه به یې د کنیت په نوم بللو ، کنیت به زیاتره دهغه سړي په اولاد کې دهغه چا په نوم و، چې هغه به ترنورو لایق او هوښیار و... له حضرت علی ( رضي الله عنه ) څخه روایت دی په جنت کې به هر سړی په کنیت بلل کیږي ، ادم ( علیه السلام ) به دابو محمد په کنیت بلل کیږي ... دا دادم ( علیه السلام ) د احترام ترڅنګ د رسول الله ( ﷺ ) احترام او توقیر هم څرګندوي...

دیته ورته په یو بل روایت کې دي چې له جنتیانو څخه هیڅ یو تن به داسې نه وي چې هغه به دې د کنیت نوم ولري، پرته له ادم (علیه السلام) چې هغه به دابو محمد په کنیت بلل کیږي...

یو بل روایت دی : کله چې د قیامت ورځ شي ... ناڅاپه به یو اواز کوونکی اواز وکړي... محمده پورته شه! له حساب او کتاب پرته جنت ته ننوزه ...

په دې اواز به هر هغه تن چې محمد نومیږي ...هم پورته شي ... د رسول الله ( ﷺ ) په احترام به هغوی ټول جنت ته له ننوتو څخه ونه ګرځول شي...

# دمذاکراتو دبهیر چټکتیا دڅه لپاره ؟

شکورشفق

داسې ښکارې چې امریکایي بلواګر نورپه تیښته اوکډې یې په بارید و دي ،اونورهغه وخت هم راورسید چې دوخت ددې استکبارد غرورمانۍ راونړیږي اودطالبانو او مجاهد ولس په لاس دماتې زهروڅښي ،الله الحمد نن دامریکااو لویدیځې ټلوالې د( 52B )ډوله الوتکو دهیبتناک ماشین شوراوځوږ نشته او نه ترې نن سبا څوک ویریږي ،ښه راته یاد دي چې د( تورې بوړې ) ددنګوغرونو په سمڅو کې په میشتو مجاهدینو او دهغوئ په کورنیو چې ښځې او ماشومان هم پکې وو دې بدنامو الوتکوداسې درانده درانده بمونه وروول چې په لیرو ولسوالیوکې یې هم دولسې وکړوغوږونه کڼول اوهرې بمې چاودنې یې دهر مسلمان له زړه دوینو فوارې بهولې او د( تورې بوړې ) دجګوغرونو په غارونوکې ددیره ماشومانواوښځوکوکاروفریا دونوبه دیوې داسې تراژیدۍ عکاسي وړاندې کوله چې انساني عواطفو نشوه برداشت کولای ، بیا مخصوصا هغه وخت چې ددې( 52B )الوتکې لخواد(تور ې بوړې) پرسر هواکې په سپین لیک د( 8) عدد ولیکل شو

،دانوهغه وعده وه چې یرغلګرو عسکروته دځینو متوسطوخلکو لخوا ویل شوي وو چې سبا (۸)بجې به ددې محاذ مجاهدین تاسوته تسلیمیږي او........ خو له بده مرغه چې ددې خارجي یرغلګروسره اوږه په اوږه دسیمې سفاک ټوپک سالاران هم روان وو اودمجاهدینو پر مورچلونو یې داسلام ددښمنانو ننګه کوله..............

او نه هم دادی د(شاهي کوټ ) دجهادي قهرمان سنګر دنیولو هغه بلواګر ځواک شته چې ددوئ په اصطلاح دمجاهدینو ددې وروستي مرکز ! ! شاهیکوټ پسې دبدناموبادارانو په لمسونه په اصطلاح دشمال ! !د ټلوالې جنګ سالار (بسم الله )غوندې پلورل شوي عناصردخپلو امریکایي بادارنوسره یوځای متې رابډوهي او دیهودو او نصاراوو سینې پرې یخې کړی ..........

داهرڅه به دتاریخ قضاوت اوهم دالله ج حساب اوکتاب ته وسپارل شي ، چې چا دچوکۍ او هوس لپاره دنوروپه نغوته داسلامي نظام په نسکور یدوکې کوشش وکړ اوڅوک نن هم دسمت ،قومیت اوملیت پالنې په نوم داسلام سره خیانت کوي اوداسلامي نظام دنفاذ

مخکې خنډ ونه ایجاد او هم دخپلو غربي بادارنو مخکې دنانځکوغوندې نځیږي.

دادی دلوی څښتن په مرسته دنصرت او بري شیبې رالنډې شوي او لیرې به نوې چې لږوخت پس دفتحې زیری ټول هیوادال واورې ، خو فتنه ګرې کړی او متعصب بانډونه به بیا دبې پرې ولسی وګړواو بې وزلو ولسونوپه سر تېرې ارې ږدې ،څوک به د( رقص مرده ) اوڅوک به د( خراسان کلان ) په زړو ربابونو نوې مزې غځوي ،داسې بې ضمیره عناصرچې دخپل وطن او ایمان په بیه سوداکوي ،که څه هم دوخت عبور اومرو ربه یې رسوااو غړی له تنې جدا کړي اودخپلو هغوخلکولخوابه دسرپه کاسه کې اوبه وڅښې چې دټول هیواد په ارضي تمامیت ،افغانی ت اواسلامیت بشپړباورلري اوددې اج ازه به ورنکړي چې دهیواد دتجزیې لپاره دداسې پر دیپالوپلانونه هیواد کې عملي کړي ، خو دداسې پلو رل شویوعناصرودایمان اوافغانیت ارزونه به لا هم ډیروخت ته اړتیا ولري اوبه کتل شي چې پایله کې څه پیښېږي.

لکه مخکې موچې وویل نورد امپریالیستانو زور اوبه شوی اوددې وس نلري چې دتل لپاره دکرزي د(وطن پلورنې قباله ) دخپل دایمي اشغال لپاره بهانه کړي ،نه ورسره نورې بې خرته پیسې شته ،نه یې پوځیان دافغا نانو سره دتلپاتې جګړې توان لري او نه ورته افغان ولس او دسیمې حکومتونه ددې اجازه ورکوي چې ټوله سلیزه یا پوره قرن ددې ولس سره جګړه وکړي ،بلکې دهرچا په خوله نن داجمله اورې را اورې چې تر (۲۰۱۴ )ز کال پورې به ټول امریکایان وځی او نور دلته نشی پاتې کیدای.

دامریکاولسمشرتورپوستې اوباما دتېر په څیر دټاکنې دې دوره کې هم دخپل ولس نه پدې شعار دکامیابۍ رأیه واخسته چې پوځ به له افغانستانه راوباسي ،همدا وجه وه چې امریکاته دکرزي دوروستي سفر پروخت چې له اوباما سره یې لا کتنه نه وه شوي دسپینې ماڼۍ دامنیتي سلاکار مرستیال دکرزي او ورغلې پلاوي داتمه پرې کړه چې امریکایان به یې تل ساتې او دوئ ته به تیارې غوښې اوډودۍ ورکوي ،نړیوالو رسنیو دسپینې ماڼې دمرستیال سلاکار خبرې داسې خپرې کړې:

## بشپړ ټول امریکایي سرتېري له افغانستانه ووځي"

دکابل داداري مشر غواړي امریکایي ځواکونه یې د هېواد له ښارونو او کلیو ووځي.

سپینې ماڼۍ د لومړي ځل لپاره ویلي شونې ده چې له ۲۰۱۴ کال وروسته هېڅ امریکایي سرتېري افغنستان کې پاتې نه شي .

دغه څرګندونې په داسې وخت کې شوې چې حامد کرزی له خپل امریکایي سیال باراک اوباما سره خبرو لپاره واشنګټن ته رسېدلی دی.

د امریکا جګپوړي امنیتي سلاکار بن روډېس خبریالانو ته وویل د امریکا اداره پر یو لړ غوراویو غور کوي.

واشنګټن ته د کرزي دری ورځني سفر کې به له اوباما او نورو چارواکیو سره مهمې خبرې هم شاملې وي، خو وروستۍ پرېکړه به نه کېږي.

دکابل داداري مشر غواړي امریکایي ځواکونه یې د هېواد له ښارونو او کلیو ووځي.

خبریالان وایي دغه لیدني کتنې په داسې وخت کې کېږي چې د دواړو هېوادونو ترمنځ اړیکیو کې د عادي حالت په پرتله ډېر درزونه دي.

کله چې په دې اړه له روډېس نه پوښتنه وشوه، چې امریکا په ۲۰۱۴ کال کې د خپل جګړه ییز ماموریت له پای سره د پاتې کېدونکي ځواک سره په تړاو پر "صفر غوراوي " هم فکر کوي، که څنګه؟ د ملي امنیت دغه مرستیال سلاکار خبریالانو ته وویل : "دا به یو غوراوی وي چې موږ به پرې غور کوو".

د امریکایانو په ګډون ډېری بهرني ځواکونه به د ۲۰۱۴ کال په پای کې له افغانستان نه ووځي.

دامریکایانوددومره چټکې وتنې عوامل ډېر ډاګیزاو ځرګند دي او هرڅوک پوهیږي چې نورد امریکااو لویځ دپوځ روحیات او نفسیات مات شوي او نشي کولای چې په مړوروحیاتو جګړه وکړي او نه ورته دومره لښکت له ځانه سره لري چې خپل ولس پرې قانع کړي. خوددې سربیره به امریکایان زیات کوښښ وکړي چې یوه دوړوپوزه ځانته کیږدې او په ابرومندانه توګه ځانته دوتلو ګودرې ولټوي چې کم تر کمه دخپل ولس له محاکمې نه پرې وژغول شي .

دمذاکراتوګرمې نغارې او دپخلاینې شعارونه نن سبا هغه څه دي چې دوئ ورته داولویت حق ورکړي اودخپلو رسنیوله لارې هر وخت دک وم چا سره دمذاکراتونغارې وه ې خومقابل لورې (اسلامي امارت) چې نه چورلټ مذاکرات ردوي اونه ورسره بلاقید اوشرطه سرخوزوي ،په خپلو غبرګونوکې پرله پسې ویلې چې دامریکایانواو نوروخارجیانو په موجودیت کې له هیڅ لورې سره مذاکرات نه کوي او نه یې له چاسره کړي ،اسلامي امارت دخپل اصولي موقف له مخې دامریکایانو اوکابل ادارې ټولې هغه هڅې سبوتاژکړې چې ورته ډېر هیله مند وو اوپدې لارو یې ډېر لګښتونه هم کړي وو.

ښایې لویدیځوال داسې کوشش وکړ ي چې دکابل دلاسپوڅې ادارې او اسلامي امارت ترمنځ دجوړجارې په پلمه له هیواده ووځي او خلکوته ووایي چې مقاومت له موجوده ادارې سره پخلا شوی ، خو هغه چې تر اوسه داسلامي امارت له محوریزې یاتصمیم ګیري ارګانونو څخه میډیاته راوتې هغه ددې ټولو چورلټ تکذیب کوي اوهغوئ غوارې چې دجهاد اقدار واوولسي قربانیوته په درناوي کومه داسې پریکړه وکړي چې داسلام بیرغ پکې هسک اودشهداوووینوته پکې عقیدت نذرانه شوي.

نړیوالو رسنیودامریکایانو تروړتیا او چټکې منډې داسې انځور کړي دي:

په افغانستان کې د امریکا د متحدو ایالتونو سفیر وایي، امریکا له وسله والو طالبانو سره د سولې د جدي خبرو غوښتونکې ده خو تراوسه پورې دا کار نه دی شوی.

جېمزکنینګهم په کابل کې خبریالانو ته وویل: «د افغانستان د حکومت لپاره مهمه ده چې خبرې پیل کړي او تر ممکنه حده ښې نتیجې ترې ترلاسه کړي.»

د تېر کال په مارچ میاشت کې د امریکا او طالبانو ترمنځ په قطر کې غیررسمي خبرې پیل شوې خو ژر په ټپه ودرېدې.

له طالبانو سره د پوهاي د زیاتولو او د دریځونو د نژدې کولو لپاره په وروستیو کې د فرانسې پلازمېنې پاریس ته نژدې یو کنفرانس جوړ شو.

په کابل کې د امریکا سفیر وایي، که د افغانستان د دولت او وسله والو طالبانو ترمنځ سوله او پخلاینه ممکنه نه شوه له ۲۰۱۴ وروسته د طالبانو پرضد د جګړې مسوولیت به یوازې د افغان ځواکونو په غاړه وي او امریکایي پوځیان به نور په جنګ کې برخه نه اخلي........ دامریکادسفیرله پورتنیواظهاراتونه په ډاګه دامریکایانوتروړتیا او ویرې ځرګندیږې اولوستونکې پوهیږې چې دوئ امریکایان دکابل له ادارې نه ډېر کوشش کوی چې له مجاهدینو سره کومه لاره خپله کړي اودتیښتې کومه ابرومندانه لاره پیدا کړي.

لکه چې مو په سرکې پرې بحث وکړچې دمذاکراتودبهیرڅپانده کیدل اوچټکتیا تر شا دنور اهدافوغوندې دامریکادماتې پیغام پروت دی اوهغه وخت لیرې ندی چې داسلامي امارت مجاهدین دخپل دښمن نه دخپلو شهیدانواواشغال کسات واخلې او خپل هیوادکې شرعي نظام نافذ کړي

# پر مالي د لويديځ يرغل د څه لپاره




حسن مومند

د نړۍ پرمخ د مالي په نوم د مسلمانانو يو بل ازاد او خپلواک خو غريب او کمزوری هېواد هم د صليبي يرغلگرو د يرغل ښکار او د اشغالولو په موخه يې ور ته فوځونه راښکته شول .

په افغانستان کې د شوروي اتحاد د ماتې او د نړۍ د يو قطبي کېدو نه پس د امريکا په شمول د ټولو صليبي زبر ځواکو نو نظرونه دوه سيمو ته وو او د اشغال لپاره يې په پلانونو بوخت وو ، دا دوه سيمې يوه منځنۍ آسيا وه او بله د افريقا لويه وچه وه چې لامل يې په يادو دواړو سيمو کې د سترو زېرمو شتون او په ډېر سرعت سره د اسلام جرړو مضبوطوالی ، دځانگوېي خپرېدل او تر څنگ يې په يادو دواړو سيمو کې په عسکري ډگر کې د مسلمانانو ضعف و.

ياني په خليجي هېوادونو کې چې د تېلو په زېرمو کې د کمېدو نښې راښکاره شوې او لويديځ ته روښانه شوه چې څو کلونه پس به يې ظرفيت دومره نه وي چې ورنه يې د تېلو اړتيا پوره شي نو ستر گې يې منځنۍ آسيا او افريقا ته واوړېدې ځکه چې په دې دواړو سيمو کې د نورو قيمتي معدنياتو په شمول د تېلو او غازو ډېرې سترې زېرمې وې چې لا خوندي پاتې وې او پرې د قبضې په صورت کې د لويديځ شر کتونو ته د پانگونې ستر مواقع هم په لاس ور تلل او د تېلو او د سون د نورو مواد ټوله اړتيا يې هم پوره کېدله ، تر څنگ يې د افغانستان د جهاد له بر کته ددې دواړو سيمو په خلکو کې او خصوصاً په ځوانانو کې په تېزۍ سره دخپرېدونکي اسلامي بيدارۍ اوجهادي نظريې ( چې اسلام دښمنه لويديځ دا په اسلامي بنسټپالنې او اسلامي تروريزم تعبيروي ، د ټولې نړۍ امن ته يې گواښ بولي او مخنيوی يې ډېر اړين گڼي ) مخنيوی هم هغه ستر مقصد و چې لويديځ يې دې سيمو ته راتللو او قبضې ته هڅولو او دا په داسې حال کې وه چې د اسلامي نړۍ هېوادونه د لويديځ په پر تله د ضعف په هغه حالت کې وو چې د ډېر کوچني عکس العمل د ښکاره کولو تمه ترې هم نشوه کېدای نو دغرب لپاره ددې دواړو سيمو داشغال اوقبضې همدا ډېره ښه موکه وه.

منځنۍ آسيا نسبتاً لرې وه او د روسانو د اشغال نه په نوې او خورا کمزورې سيمه کې د روسې ، چين پاکستان او هند په څېر اتومي هېوادونو ته د امريکا او نور لويديځ فوځي حضور او ددې سيمې اشغال د منلو وړ نه و نو ځکه امريکا دلته يوازې د نظامي اډو جوړولو په فکر کې شوه او چې افريقانسبتاً نېږدې او مشکلات پکې کم وو د اشغال او قبضې نوبت يې رامخکې او په هماغه ۹۰ يمې لسيزې کې چې د روسانو د ماتې شپې وې امريکا پر صوماليه حمله وکړه او عسکر يې ور ته راکوز شول .

خو د امريکايي فوځيانو له بده مرغه چې دغو شپو ور ځو کې د شيخ اسامه يوشمېر مجاهدينوملگرو په صوماليه کې حضور درلود نو د صومالي د مجاهدينو په مقابل کې په ځمکني جنگ امريکايي فوځيان د سختې ماتې سره مخامخ شول او چې بيا کله د صومالي مجاهدينو د امريکايي وژل شويو فوځيانو په غاړو کې پړي واچول ، په سړ کونوېې راښکل او جوړه شوې ويډيو يې خپره شوه نو د دولت پر ضد د امريکايي ولس د سترو لاريونونو او په نړۍ کې د سترې رسوايۍ سره د امريکا د مخامخ کېدو له وېرې امريکايي فوځيانو د صوماليه نه پښې سپکې کړې .

خو بیا هم دصومالیې د زیات کمزوري کولو او په راتلونکي کې پکې د بیا مداخلې په هیله دې هېواد کې داخلي جنګ دوام ته ټول کوښښونه روان وو.

لا پر بل افریقایي اسلامي هېواد حمله نه وه شوې چې د ۱۱ ستمبر پېښه رامنځته او د امریکا په شمول دټول لویدیځ لپاره منځنۍ آسیا ته درانېږدې کېدو پلمه شوه نو افریقا شاته او ټوله توجو ددې سیمې ژر اشغال او قبضې ته راواوښته او په افغانستان یرغل وشو، خو چې پدې جنګ کې دښو ډېرو لګښتونو او ځاني تلفاتو سره سره هم دا زبرځواکونه د بریالیتوب نه ناهیلي او ماتې یې یقیني شوه نو د افریقا د اسلامي هېوادونو پر ضد یې شیطاني پلانونه بیا تېز شول، سوډان یې تجزیه، جنوبي سوډان کې یې یوه لاسپوڅې اداره رامنځته کړه او امریکا پکې خپله فوځي اډه جوړه کړه چې شپه او ورځ ترې بې پیلوټه الوتکي د شمالي سوډان، یوګنډا، ایتوپیا، جبوتي، کینیا او صومالیا په خاورو د جاسوسۍ لپاره پروازونه کوي.

ورپسې بیا تېر کال نابڼو دلیبیا په نوم دمسلمانانو دتېلو په یو غني هېواد یرغل وکړ چې په نتیجه کې یې ددې هېواد ولسمشر قذافي ووژل شو، اداره یې رنګه، کورنۍ جنګ پیل او د لیبیا د اشغال شوم پلان مخ په تطبیقېدو شو.

او اوس دادی د مالي په نوم د افریقا په یو بل هیواد ک ې د اسلام پالو وجود او فعالیت پلمه شو او دناټو له لورې د جوړ شوي پلان له مخې پر ې ددې صلیبي اتحاد یو مهم غ ړي فرانسي فوځ یې یرغل وکړ.

مالي د لویدیځې افریقا په وچه کې یو راګېر د افریقا اووم او د ټولې نړۍ ۲۴م ستر هېواد دی چې د موریتانیا، سنیګال، ګنی اور، بر کینافاسو او رایوری کوسټ، نایجر او الجزایر نومي هیوادونو سره ګډې پولې لري، بمباکو یې پلازمېنه ده، کابو ۱۵ میلیونه نفوس لري او دسواد کچه پکې ۶۰٪ ده، ځمکه یې اواره ده، موسم یې ګرم او خشک وي، کابو ۶۵٪ ځمکه یې شګلنې و چې دښتې دي یوائې د هیواد په سهیلي برخه کې د نایجر سیند ته نېږدې فصلونه کېږي او همدا سیمه یو څه زرغونه ده، خو چې پکې زراعت وروسته پاتې دی او د پرمختللو طریقو نه پکې کار نه اخستل کېږي نو حاصلات یې دومره نه وي چې د هېواد دغلو دانو اړتیا پوره کړي، د کب نیونې سره د هیوادوالو علاقه زیاته ده خو سمندر سره د پولې دنه درلودلو له امله په کب نیونې کې ډېر مشکلات لري خو بیا هم د هېواد ۸۰٪ وګړي د کب نیونې او فارمي حاصلاتو له لارې خپل ژوند مخ په وړاندې بوځي، دمېرمنو کورنی صنعت یې لاسي لوښي دي چې په سیمه کې ډېر شهرت او ښه مارکیټ لري، په نړیوال مارکېټ کې یې پومبه ډېر ښه نوم لري.

مالي په تېرو زمانو کې مرکزي افریقاته د تلونکو سیلانیانو لپاره دامن نه ډکه لاروه، یو وتلی صنعتي هېواد و، دفیل دغاښونو نه دجوړوشوو مصنوعاتو ډېر ستر مرکز و، دډول ډول قیمتی ډبرو کانونه پکې وو خو دسروزرو کانونو یې ډېر شهرت درلود چې دهمدې امله داهېواد دخپل وخت دبډایو هېوادونو نه ګڼل کېدلو، مشهور مسلمان سیاح ابن بطوطه او نامتو مورخ ابن خلدون او المعری هم لیکلي دي چې مالي یو بډای هېواد و چې دبډایتوب له امله دسیاحانو د توجو مرکز ګرځېدلی و، دتاریخ کتابونو دا هم لیکلي دي چې ددې هېواد مشر سلطان منسي محمدموسی چې په کوم کال حج کولو نو ددې هېواد ۶۰ زره تنان ور سره ملګري وو او دومره زیات سره زر او قیمتي ډبرې ور سره وې چې ۱۲ زره تنان یې دښکته او پورته کولو لپاره تعین شوي وو، خلکو ته دډالۍ کولو لپاره چې کوم سره زر ځانګړي شوي وو داوسني حساب له مخې یې وزن ۸ زره کیلو جوړېږي، دځنې څېړنیزو ادارو له لورې په څېړوشویو راپورونو کې راغلي دي چې په اوس حساب دمالي بودیجه ۴ سوه ملیار دوډالرو ته رسېدله.

خوهمدا دنړۍ په بډایو هېوادونو کې شمېر هېوادا وس دنړۍ په تر ټولو عریبو هېوادونو کې شمېرل کېږي حال دا چې دې هیواد کې اوس هم ډېرې سترې زېرمې شتون لري خو له بده مرغه چې دا هېواد یې لاهم په استخراج او ورنه په کار اخستلو نه دی توانېدلی، دسروېکانونه دامعلومه شوې چې دمالي په کانونو کې ۷ زره ټنه یورانیم، ۲ سوه زره ټنه وسپنه تر ۱۲ سوه ملیونو ټنو پورې ددفاسفیټ، کاونسین جپسم اومرمرو ډبرې ۴ زره ټنه لیتیم او ۵۳ بیلیونه ټنه غریزه مالګه شتون لري، مالي کې دتېلو او ګاز وهم څه کمی نشته اود سروزرو کانونه خو پکې بیخي له شمېره وتلي دي، دمالي جغرافیايي ارزښت دادی چې دافریقانه دلویدیځ مارکېټونو ته ټول تېل اونور مواد له همدې لارې ځي نوهمدې ته په پام سره داویل بیخي پر ځای دي چې په مالي دلویدیځ یرغل یوائې دزېرمو دغصب لپاره دی اوبس.

کومې فرانسې چې اوس پر مالي یرغل کړی له دې وړاندې یې هم پرې یرغل کړی اوداوږدې مودې لپاره یې تر استعمارلاندې وه ، په ۱۸۸۰ کې د فرانسې فوځونه مالي ته راننوتل او دا هېواد یې تر خپل استعمار لاندې راوست چې تر ۱۹۶۰ یې دوام وکړ ، داد استعمار ډېره اوږده زمانه وه چې پکې د مالي په څېر د غریب ولس ژبه ، کلتور او مذهب هر څه بایدبدل شوي وای خو آفرین د مالي دمسلمانانو په کلک ایمان چې د عیسوي دعوتګرو د سختو کوښښونو او د جابر فرانسوي دولتونو د سختو فشارونو سره سره هم ددوئ دا هیڅ بدل نه شول ، په دې هیواد کې اوس هم ۹۰٪ سوچه مسلمانان دي یواځې یو ۱٪ پکې عیسویان دي او ۹٪ یې د افریقا د زړو مذهبونو پیروي کوي، نو داویلی شوچې د استعمار په نېږدې ۸ لسیزو کې مسلمانانو بیخي خپل دین نه دی پرېښی که عیسویان شویدي نو ټول د افریقا د زړو مذهبونو پیروان عیسویان شوي .

یواځې په پلازمېنې او نورو ښاري سیمو کې ډېر کم وګړي په فرانسوي ژبې خبرې اوزدکړې کوي ، دوئ هغه وګړي دي چې دفرانسوي استعمار پرمهال یې غربي کلتور خپل کړی وو ، دوئ په مالي کې د ،، ایلایټ ،، په نوم یادېږي ، داستعمار پرمهال یواځې همدوئ دمدني حقوقونه برخمن وو او دوتلو پرمهال فرانسې دقدرت واګې همدوئ ته په لاس کې ور کړې ، دوئ دفرانسې فکري غلامان دي ، په کلتوري لحاظ مالي دفرانسې برخه ګڼي چې عام مسلمانان ددې سخت مخالف دي همداعمل اوعکس العمل دډېرو ګډوډیو لامل دی ، له ایلایټ پر ته نور ټول وګړي په خپلې ژبې غږېږي اوپرې زدکړې کوي .

فرانسوي پوځي عرادې د مالي په سړکونو ګزمه کوي



په خپل دین باندې د کلک پاتې کېدلو عمده عامل دلته د دیني علومو سره د خلکو زیاته مینه او په هېواد کې د دې علومو د درسګاهونو زیاتوالی و ، د نړۍ په تر ټولو قدیمو جامعاتو کې د مالي دټمبکټو سان کوري نومې جامعه هم ده چې د ۱۴مې میلادي پېړۍ راهیسې قائمه ده ، د مالي په عامو مسلمانانو کې د حج د سفر او په ځوانانو کې یې ددیني زدکړو لپاره دعربي هیوادونومدرسو ته د سفر د کولو سره مینه په ډېره تیزۍ مخ په زیاتېدو ده .

په مالي کې همدا د اسلام خوښو ډېرېدل او دلته د ډېرو زیاتو زېرمو شتون د لویدیځ د اوسني یرغل اصل لامل شو ، خو پلمه یې څه وه؟

ددې لنډ شالید دا دی چې د هیواد د شمال ،، ازواد ،، نومې سیمې خلکو په تېرو وختونو کې دا سیمه یو خپلواک ایالت ګڼلو ، خپلواکي یې په رسمیت نه وه منل شوې خو د ازادۍ غوښتنې بیخي له منځه تللې هم نه وچې د ازواد د ازادۍ همدې تحریک له لورې بیا د ازادۍ غوښتنې تحریک زور واخست او د ۲۰۱۲ د اپریل په ۶مې نېټې د آزادي غوښتونکو او فوځ تر منځ د جګړې رامنځته کېدو نه پس ازادي غوښتونکو د ،، ازواد خپلواکي اعلان کړه د واک واګې یې په خپلو لاسونو کې واخستې ، د همدې ۲۰۱۲ کال د اپریل په ۲۶مې نېټې د ازواد د ازادۍ تحریک د ،، جماعةالتوحید والجهاد فی غرب افریقا ،، نومې د اسلام پالو حرکت سره یو شول او اسلامي دولت یې اعلان کړ خو هیڅچا په رسمیت ونه پیژندلو ځکه چې دا اسلامي دولت و که ازادي غوښتونکي عیسویان وای اوعیسوي دولت یې غوښتلای نونړۍ به لیدلی وای چې څومره ژر دنړیوالو له لورې په رسمیت پیژندل کېدلو ، کله چې په اندونیشیا کې عیسویانو بغاوت وکړ او دشرقي تیمور په نوم دولت اعلان کړ نو دملګرو ملتونو ادراې ، امریکا اوټولې اروپایې نړۍ نه یواځې په رسمیت پیژندل اعلان کړ بلکه قانوني تحفظ یې هم ور کړ ځکه چې دادولت عیسوي دولت و خو اوس چې په مالي کې ځایي خلکو اسلامي دولت اعلان کړ نو دملګرو ملتونواداري نه چې ددې هېواد ولسمشر داسلام خوښو په مقابل کې دمرستې غوښتنه وکړه نو سمدستي دملګرو ملتونو اداري دې هېواد ته دافریقایي اتحاد دفوځونو ور تلل منظور کړل ، دافریقایې اتحاد دفوځونو دتیاري خبرې لاروانې وې چې فرانسې خپل اخلاص ښکاره کړ او دامریکا په شمول یې دټول لویدیځ د ګډ پلان له مخې دمالي شمالي ښارونو ته خپل فوځیان رالښکته کړل تر څو دهوایي ځواک په مرسته داسلام پالو له منګلونه دابنارونه ازاد کړي .

دجنګ تر ډګره فرانسوي فوځيانو ته دلوجستکي مرستو درسولو لپاره برتانې ، بلجيم او ډنمارک فرانسې ته طيارې ور کړې او دبرقي مواصلاتو ټول انتظامات امريکا په خپلې غاړې اخستي ، فرانسوي فوځيان دپلازمېنې نه ۴۰۰ کيلو متره لرې په شمال کې دوياباليې ښار دنيولو په هڅو کې دي دمجاهدينو دسخت مقاومت سره مخامخ شوي دي ، دفرانسې دولت ويلې وچې دابه لنډ تصفيوي عمليات وي خو سره له دې چې کابو ۲ اوونۍ تېرې شوې خو فرانسوي فوځيان ديو ښار په نيولو هم لاندې توانېدلي ، شايد دفرانسې فوځ دمجاهدينو ترولکې لاندې ښارونه ونيسي خو ساتنه به يې ډېره ستونزمنه مسئله وي ځکه چې دفرانسې فوځيان که دلته داوږدې مودې لپاره پاتې کېږي نو ځاني تلفات به يې حتمي وي ځکه چې که دوئ يې مني او که نه دلته به مجاهدين قوي کېږي او که په خپله نه پاتې کېږي نو دمالي دولتي فوځ به په هغه معيار روزي چې دمجاهدينو سره دمقابلې جوګه شي چې دا دواړه کارونه اوس دافغانستان د مجاهدينونه د تېښتېدلې فرانسې لپاره ناشوني دي خو ددې هېواد نه اوس وتل هم دفرانسې لپاره آسان کار نه دی اوفرانسه يوځل دسترې رسوايۍ سره مخامخ کېدونکې ده .

په مالي کې دخورا زياتوزېرمو دستونې نه دتېرولو او دلته دمسلمانانو دځپلو او دغربي کلتور دخپرولو په موخه اوس امريکا او ټول لويديځ راتلل غواړي خو دخپلو شومو اهدافو او ماديانو دا ليوني بايد په دې پوه شي چې دې يوهدف ته به هم ونه رسېږي تر کومه چې داسلام نه ددې خلکو داړولو او دغربي کلتور دخپرولو خبره ده نو چې دنه بيدارۍ او دخورا ډېرې کمزورۍ پرمهال پرې فرانسه نه وه توانېدلې نو اوس چې دمالي ولس دبيدارۍ اوخپل دين ته دنژديکت ترهغه سرحده رسېدلې چې جهادېې پيل کړی ځرنګه به پرې وتوانېږي ؟!چې ورسره به يې دزېرمو دقبضې ارمان هم پوره نه شي .

که څه هم دمالي ځمکه هواره اومجاهدين يې سمدستې دوسايلو په لحاظ کمزوري دي ، لويديځ به ددوئ دوسايلو په لحاظ همدې کمزورۍ ته نظروي اوفکربه کوي چې ډېر ژر به يې له منځه يوسي چې همدا ددوئ ستر حماقت دی ، جهادچې هر ځای پيل شوی په پيل کې مجاهدين کمزوري وي خو بيا وروسته قوي شي ، مجاهدين به په دې هېواد کې هم مضبوط شي نه به ورنه يرغلګر په ارام سا واخلي اونه به ددې هېواد دزېرمو په لوټولو هغسې برياليې شي لکه ځرنګه چې ګومان کوي . ان شاءالله .

# د صــدا قــت خبــري

سيد احسان الله الهام

چي دچـور لکـو آوازواورم شـهيـدان رايا دشي
زړګي مي دردوکړي او پاته يتيمان رايا دشي

رايا دوي مجـاهـدين دصــد اقــت خـبري
چي دوحشت خبري واورم صليبيان رايا دشي

چي ديوسف عليه السلام حقي قيصې ته غوږشم
په اسو پلو کي دناټـو وحشي زندان رايا دشي

څوک چي کوي خپلـومنځـوکي دخيـانت خبرې
ماته لـه ورايه قسم خوره ليډر ان رايـادشي

په وطن فـروشوچي څــه ليکـمه دشعـر په بـڼـه
راتـه دلو جـرګي پلـورلي پارلـمـان رايـادشي

چيري چي ووينـم لـو ټ شوي کنـډواله کورونه
هم جاسوسان هم اربکيـان هم قـاتلان رايـادشي

کلـه چي ګورم په قرآن کي دغـضب حــقـداران
دحيرانتياسيلاب مي يوسي ګوډاګيان رايادشي

دانټرنـيـټ په فېسبوک پاڼه چي بمبارذکـرشي
اوښکي مي تويي شي الهامه مظلومان رايادشي

# نورڅه ډول مصؤنيت !!!؟

لطیف عزم

دکابل اداري مشر کرزي ، امریکاته دخپلې درى ورځنى دورې له تکمیل ورسته تیره اونى په کابل کې خبریالانوته وویل چې امریکایان په دې لټه کې د ي ترڅوپه افغانستان کې خپلو پوځیانوته قضایي ژغورنه اومصونیت لاسته راوړي ، خودکرزي په وینادقضایي ژغورنې تصمیم به لویه جرګه نیسي .

کرزي داونه ویل چې دده لویه جرګه به څه وخت دایریږي اودنوموړي جرګې په مټ به امریکایي وحشي لښکرې نورڅومره قضایي مصونیت ترلاسه اوپه افغان اواسلام ضد کړنوکې به یې لاس اوږدشي ؟

شک نشته کچیرې دکرزي له لوري کومه جرګه اوناسته دهمدې موضوع په باب جوړیږي نواورومروبه هغه څه پرې تصویبوي اوله برخوالوبه یې تائیداخلي ترکومه حده چې کرزی اوامریکایان ورته ضرورت اواړتیاولري ، ځکه دتیرو کلونوتجربوښوده ، چې دجرګې له تدویرمخکې اول ورته غړي دڅوزروډالروپه بیه خریداري کیږي او پوهول کیږي چې دجرګې په ورځ به صرف هغه څه وایي اودتاییدلاس به اوچتوي کوم چې ورته دجرګې دتدویرموظف کمیسون وایي !

له بلې خواداخبره هم ثابته ده چې دکرزي دلویې جرګې اکثریت غړي هغه څیري تشکیلوي چې دکابل اداري په دولتي چوکاټ کې غوړې اوچربې دندې لري اویاداامریکایي مرستندویه ټولنوغړي اوچلو ونکي وي ؛ نوددغسې امریکا ډوله اوافغان نماڅیروپریکړي اوتصویبونه خولکه لمرغوندې ښکاره اوروښانه دي چې امریکایی

ګټې او غوښتنې له افغاني مصالحو او ارزښتونو څوبرابره مقدمې او وړاندې شمیري !

له امریکاسره دستراتیژیک تړون دسند د لاسلیک لپاره هم په کابل کې لویه اجیره جرګه په نیته رابلل شوي وه چې ګډون والوېې په خوراتیټ اوپلورل شوي ضمیر دتړون تاییداو تصویب لپاره غبرګ لاسونه اوچت کړل اوپه امریکایي وحشتونو او اسلام ضد قصدي برنامويې هیڅ اعتراض اونیوکه ونکړه اونه یې هم ددې خبرې پوښتنه وکړه چې ولې امریکااوناټو ۲لکه مظلوم افغانان دتیرو ۱۲کلونو په اوږدوکې مړه اویونیم میلون یې شکنجه کړل

اوس چې کرزي ته امریکایانو دقضایي مصونیت دنده سپارلې اوشرط یې پرې ایښی چې که غواړي په افغانستان کې امریکایي اشغال اوږدشي اودکابل دکړوبیدونکي اداري موده یوڅه وغزیږي نواول بایددامریکایي فوځیانود قضایي ژغورني اومصونیت تضمین اوهوکړه دوی ته ورکړل شي

قضایي مصونیت څه ته وایي ؟

دقضایي مصونیت موضوع چې داوبامااله اړخه مطرح شوي دکارپوهانوپه اندهغه د( کاپیتولاسیون ) دقانون یوجز دي ، کاپیتو لاسیون په معنادشرط ایښودلواوپه لغوي مفهوم سازش اوتسلیمی ته ویل کیږي اوپه هغو قراردادونويې اطلاق کیږي چې دیوه هیواداتباع بې د بل هیوادپه قلمرواوحدودوکې دخپلو قوانینو اومقرراتوپه رڼاکې پلې کول اوتطبیقول غواړي ، چې داډول شرایط له شک پرته دیوه هیوادپه کورنیوچاروکې څرګنده لاسوهنه اودهغه هیواددااساسي قوانینواواقداروسپکاوي دی یاپه بله ساده ماناديوه هیوادله هرډول شرط اوقیدپرته تسلیمول دي

امریکایانودتیرو ۱۲کلونوپه اوږدوکې خپلوپوځیانواوتکنالوجي ته داحق ورکړي ووچې دافغانانوپه حق کې له هرډول استبداداوشرارت نه استفاده وکړي ، هغوی ووژني ، هغوي شکنجه کړي دهغوي ملي اوديني ازادی ترپښولاندې کړي ، اوس امریکایان غواړي چې خپلو تیرواوراتلونکوتېولوجنایتونوته دقضایي مصونیت ترنامه لاندې کرغیړن اوشیطاني حق اوجوازهم ترګو کړي اوکه داشغال په دروان کې بې دوه لکه مظلوم افغانان له تیغه تیرکړي اویونیم میلون یې شکنجه کړي اویایې نورې څومره فجایع اوخیانتونه سرته رسولي په هغوقانوني پرده واچوي اوضمنآ يې اوافغانانوته ووایي چې که هرجرم اوکړنه په افغانستان کې امریکایانوترسره کړي دایې دافغانانوپه خوښه اواجازه ترسره کړي

اوس نه پوهیږوچې مکارکرزی امریکایانو ته نورڅه ډول مصونیت غواړي ، وحشي صفته امریکایانوخودافغانستان دخلکوپه دیني ارزښتونو، عفت اوعصمت دومره لوبې اوتیري وکړل چې که کرزی دخپلوتش په نامه هغوپلاوو دټاکلودوسیه راواخلي چې دامریکایانودوحشي اونه پتیدونکوکړنواوجنایتونودځیړنو اود افغانانو دتیرایستلو لپاره یې وخت په وخت ګمارلي اونتیجه یې تراوسه نده معلومه نوشمیربه یې سوونوته ورسیږي !؟

ثابته خبره ده چې امریکایانو داشغال له رومبی ورځې ځانته دقضایي مصونیت حق ورکړی وو، که داسې نه وي نو دکرزي اداره دې ووایي چې ددوي کومي څیړنې اوپلاوي ته امریکایانو مثبت ځواب ویلی اویاتیارشوي چې له تحقیقاتي پلاوو سره مرسته اوکومک وکړي ترڅو دقضایي ګرفت لپاره دپیښو اصلي عاملین اوقاتلین معلوم کړل شي

کرزي ونه لیدل چې ۲ امریکایي وحشیانو دبګرام په هوایي اډې کې په کوم تکبر څو زره قراني نسخې ( العیاذبالله ) په داسې حال کې چې افغاني عسکرواوکارګرانوورته ناري وهلي چې دازمونږ مقدسات دي اومه یې سوځی خوبیایي هم وسوځلې اودبګرام جنرالانویې نندارې کولې اوکرزي هغه ویډیوګاني ونه لیدلې چې یوې ډلې امریکایي عسکرودهغوافغانانوله جسدنوسره څه برخوردوکړچې رومبی وژلي ووا وبیایي پرې متیازي هم کولي.

اوباماچې له کرزی نه قضایي مصونیت غواړي ، کرزی بایدرومبی داپوښتنه له اوباماوکړي چې که فرضاافغانان تاسوته په خپلې خاورې کې قضایي مصونیت درکړي نوایا امریکایي عدالتونه ترکومه حده چمتودي ترڅوخپلوحرامیانوته په خپل هیوادکې مناسبه سزااوجزاورکړي !؟

اوکرزی دامریکایي عسکروهغه ورستي جنایت ته څه پرتوګ کوي چې څوتنه امریکایی عسکرودترکیي د( اینجرلیک ) ولایت په میشتې لویی امریکایي اډې کې دمسلمانانویوه جومات ته ننوتل دممبرپه شمول دجومات ټولوقراني نسخواودیني کتابونوته یې اوروته کړ، په داسې حال کې چې امریکایانوله ترکیي سره دستراتیژیک تړون په شکل کې داخبره منلې چې عسکربه یې دترکیي اسلامي اودیني عقایدواومقدساتوته درناوي کوي ، نوچې د ترکي غوندې هیواد چې په اقتصادي ، پوځي اوسیاسي ډګرونوکې خودکفااود اودامریکا یانوهیڅ ډول ملاتړته اړتیانلري خوبیایي هم دمقدساتواوقوانینویې دارنګه سپکاوی اوبې حرمتي کیږي ؛ دکرزي دکاواکه اداري به څه برخلیک وي اوامریکایان به یې کومې پریکړې اوتړون ته درناوی وکړي چې له ولسمشر نیولې ترچپړاسي پوري یې معاش اوخوراک ټول دامریکایانوله جیب اوخورجین څخه تادیه کیږي

کرزی بائیدپوه شي چې امریکایان دیوې شپې لپاره هم په افغانستان کې هغه افغانان چې دامریکابیړی یې دغرقیدو په مورګه درولي نه مني اونه هم دقضایي مصونیت اوبلې کومې غلامی اوتي بوتي کوم اهمیت اوارزښت ورته لري ،امریکایان دافغانانوقاتلین اوغلیمان دي چې وس یې پرې برشي دیوې لحظې لپاره یې هم ساه اخستوته نه پریږدي

ښه داده چې کرزی دامریکایانوپه ځای دځان دژغورنې اومصونیت لپاره په کوم غربي هیوادکې دپناه اخستلولارې چارې ولټوي ، دافغانانوپه سرنوشت دې نورې لوبې نه کوي اونه دې هم مذیددافغاني جرګو اوعنعناتو سپکاوی اوبې حرمتي کوي !

# حملات علیه ارگان جاسوسی دشمن انتقام از وحشی گری است

ذبیح الله "مجاهد"

در این آواخر شبکه جاسوسی اداره مزدور کابل به بعضی از رسانها لاف زده است که گویا آنها بخاطر فعالیت بیشتر شان در برابر مجاهدین ، هدف حملات اخیر پی هم فدایی گردیده اند و همین دلیل است که رئیس این اداره هم در حالت بسا بدمهمان بارک اوباماشد ، ولی واقعیت ها چنین نیست ، اشخاص هوشمند اگرچنین ادعاها را بشوند خود میدانند که این جزلاف میان تهی چیزی بیشتری نیست ، زیرا در پیش دلائل زیادی وجود دارد که این دعوا را باطل می سازد وذیلا یک یک تحریر می گردد :

۱.اگر راست هم سازما ن جاسوسی اداره کابل توانای اجرأت وظیفوی را میداشت پس چرا رئیس وشخص اول این ارگان در بسترخو اب خود(مهمان خانه اش) زیرحملهء سنگین فدایی قرار گرفت ؟ در حال ی که نسبت به تمام شاخصهای این اداره مقام ریاست آن باید مصئونتر و محفوظ تر می بود !!!؟

۲ـ اگر ادعای قوی شدن استخبارات دش من درست شود پس چرا تا به حلق این اداره ، دوموترمملو از مواد مفجر به قصد حمله رسانده شد ؟ درحالی که تا آن زمان اداره جاسوسی کابل از شناخت بارود به کاربورده شده نیز شناسای نداشت !!! و چندتن مجاهدین تا یک ساعت در سالون ، دهلیز ها و چاردیواری ریاست تحقیق این سازمان شیطانی اداره مزدور به جنگ ادامه دادند ؟

۳ـ چندروزقبل، حملات قویتربعدی و ۹نیم ساعته دیگر نیز در منطقه دهمزنگ زیر چشم همین اداره استخبارات به اجرا درامد و کارمندان این اداره نتوانستند از قبل بدانند که این افراد مجاهد وفدایی از بیرون کابل با اسلحه سنگین وخفیف چیطور توانستند یک ساختمان را تصرف کنند و جنگ را ازصبح تا دیگر ادامه دهند.

۴ـ این که در ولایات هم شاخه های همین اداره فعالیت دارند ومعاشات بلند د الری میگیرند نه توانسته اند تا جلو یک فی صد عملیات ها ی مجاهدین را هم بگیرند ، که روزانه دها حوادث نظامی درنقاط مختلف کشور، شاهد چنین واقعیت است.

پس بر می گردیم به این که چرا ریاست ها وحتی مقام اول این اداره اخیراً مورد حملات بیشتر قرارگرفت ؟

پاسخ سهل است ، مجاهدین میخواهند بعد از کوبیدن دشمن دست اول ( نیروهای اشغالگر) مزدور دست اول را نیز بکوبد ، ثانیا همین اداره

جنایت کار است که بسیار به نامردی جوانان مجاهد وحتی هموطنان مظنون و بی طرف را هم زیر مجازات غیر انسانی قرار میدهد ، توقیف شد ه های که اززندان ها وتحقیق گاه های همین اداره بدنام بیرون آمده اند طوری مجازات وشکنجه شده اند که مادام عمر دوچار معیوبیت و دشواری هستند ، اداره استخبارات کابل ، توقیف شده هارا توسط آتش ، شارتی برق ، پیچیدن آلات تناسلی ، وسائر گونه های شکنجهء طاقت فرسا مجازات نموده اند که زندانهای اسرائل در تلابیب وقبلا توقیف گاه های خلق وپرچم درزمان کمونستها برایش عاجز می ماند ، پس مجاهدین هم باید انتقام چنین وحشت هارا از فرد اول گرفته تا مأمور پایین رتبه این سازمان خیانت ملی بگیرند ، واین را نه میتوانیم عکس العمل فعالیت بیشتر ارگان اهرمنی نسبت به سائر ادارات دشمن تلقی نمود ،به صراحت باید تذکر داد که حملات اخیر علیه وابستگان این دستگاه مجازات و انتقام از وحشت ها است ، نه چشم سوزی از این ا رگان .

مامیندانیم که در چهار چوب دستگاه شیطانی مذکور، همین اکنون دو جهت وحشی با هم آمیخته اند که علیه عقیده ، دین و مردانه گی افغانها سالها است ایستاده شده اند ونه میخواهند کشور اسلامی ما تحت چترقوانین شرعی دم آرامش کش د ، یک جهت اداره بدنام سازمان جاسوسی اداره کابل همان قسم خورده ها وکمونستهای سابق اند که در زجر و شکنجه انسان پرورش یافته اند و روی باورهای نامقدس قبلی خود علیه دین، عالم دین ، ریش ، لباس اسلامی ، لنگی ودستار حساسیت خاص دارند واز مجازات کسانی که موصوف به صفات فوق اند لذت می برند ، کتله دومی این معجون مفسد افراد شروفساد سابق و جنایت کاران حرفوی اند که روی جهالت خویش هر آن کس را مورد شکنجه ومجازات قرار میده ند که مخالفت به تمایلات حیوانانی این کتله مفسد نموده اند ویا مخالف وحشی گری ها ، فسق ، فجور ، شرافگنی ،مظلوم آزاری و اذیت آنها بوده اند و جلو این وحشی هارا می گیرند ، آن که این دو طبقه را یا به کو ی انسانیت وسلام تی ویاهم درصورت عدم پذیر ش به گودال نابودی می فرستد آن قانون واقعی اسلام عزیز است و افرادی که آمدن چنین قانون مقدس را به ملت خود به ارمغان می اورند دست اندر کاران دین و بند ه های مخلص خداوند یکتا و توانا ی خود اند ، به همین دلیل ا ین کتله فاسد هم اهرمن آسا ، افراد پاک سرش و ر وشن ضمیر جامعه خویش را هدف قرار میدهند وسعی دارند که در زمان اسارت ومظلومیت ،آنهارا به مجزات دلخواه ایشان شکنجه دهند ، لذا فدایان راه خداهم روی مکلفیت دینی خود وظیفه خود میدانند که انتقام تمام مظالم را از این وحشی های درنده صفت بگیرند ، درراپور اخیر ملل متحد که نسبت به بدرفتاری تمام ارگانهای ذي ربط اداره کابل پخش گردید ، اکثریت راپور گواهی به آن وحشتها می دهد که در سلولها و تحقیق گاه های دستگاه خیانت ملی اداره کابل به وقوع پیوسته است ، در این راستا به هزاران تن از هموطنان ما که دوباره از چنگال این دشمن زبون نجات یافته اند هم شاهد بالفعل تمام وحشتهای استخبارات کابل می باشند .

# دحدیث شریف د تدوین تاریخ



دویمه برخه

**داسلامي نړۍ ثقه دیني عالم او راښاد دوکتور محمد حمید الله رح ژباړن :شهاب منصور**

له سرشمېرنې علاوه یو بل شی هم په لاس را ځي ،هغه (غالباً) دهجرت په لوم ړي کال پورې اړه لري، داچې هغه مهال ځوک یې تمه هم نکوي ،نو نااشنا او عجیب ښکاري ،هغه د حکومت لپاره دستورجو ړول دي، ورته اړتیا څنګه پیداشوه ؟ دمکې قریشو د زیاتو ظلمونو اوتیریو په وجه لوم ړی صحابه وو او بیا پخپله رسول الله ( ﷺ ) هجرت کولو ته اړ شوا و له مکې نه مدینې منورې ته لا ړ، له د ې وروسته که قریشو مسلمانانو ته د اذیت رسولو څخه لاس نیولی و ، ممکن چې مسلمانانو له خپلو زړو دوطن ، کلې ، کور و ،مالونو او خپلوانو دمحرومیت غم ایستلی وای ،په نوې هیواد کې د ژوندانه ستونزو کمولو په لوری یې پام اړولی و ،خو قریش له هغوئ نه کرار نشول ، کله یې دا ولیدل چ ې رسول الله ( ﷺ ) او مسلمانان نور ددوئ دظلم له مونګلو خوند ې شول ،زیات غوسه شول ، ژر یې دمدینې خلکوته یو لیک واستاو : دهغه لیک لن ډیز دادی : ستاسې وطن ته زمونږ دښمن پناه درو ړی ، هغه یا خپله ووژنئ ، یایې له وطن وشړئ او یا یې مونږ ته وسپارئ ! که یو هم نکوئ بیا مونږ پخپله یو مناسب ګام اخلو ! څرګند

څرګنده ده چې دمدینې خلکو یوه هم و نه منله ، وروسته ګواښنه چ ې مونږ به خپله کوم ګام واخلو !ممکن چې ناپوپه واکمن او حاکم له پام ه غورځولی و ،خو هغه پیغمبر لپاره چ ې هغه الله (ﷻ) نړۍ ته "اسوه حسنه" ګرځولی ،ضروري وه چ ې له ځان وروسته واکمنو ته دا ښوونه وکړي چ ې هغوئ د دغسې نازکو شیبو پر مهال څه وکړي؟ ،یعنې له دښمن په خاصه تو ګه له ملي دښمن خپلي ملې ګټې خوند ې ساتل اړین دي ، دې لړکې د کومو تدبیرو دغوره کولو اړتیا ده؟ دغه مها ل رسول الله ( ﷺ ) دوه احتیاطي ګامونه پورته کړل ،په لوم ړي ګام کې هغه خلک چې مها جر و ه ، هغوئ بې کور او بې وطن ، یو اجنبې وطن ته په داس ې حال ک ې لاړوه ،چ ې دتن دیوجو ړ کالیو پرته ورسره نور څه نه و ، دهغوئ د ژوند چارې ی ې جوړې او تنظیم کړي ، اګر که مهاجرین په شمار ډېر نه وه ، شاید څو سوه وه ،خو هغه مهال وسایل کم وه ، په یوه کوچن ې ښار کې د څو سوه تنو لپاره دجلا ژوندانه ضروري اسانتیاوې برابرول هم یو قوي چیلنج و ، تقریباً دومره مشکل و ، لکه نن سبا چ ې یو هیواد ته مثلاً دزرتنو په ځای یولک یا

لس لکه خلک ورشي !هغه مهال دیته ورته ستونزه وه ، خو رسول الله (ﷺ) پخپل سیاس ي فراست دا ستونزه په ښه ابرو مندانه توګه حل ک ړه ، دمدیني منوري هغه خلک چ ي نسبتاً خوشال اوشتمن وه ، هغوئ یئ دمهاجرینو له استازو سره یوځای ځان ته وروغوښتل ، رسول الله (ﷺ) انصاروته دمهاجرینو په باره کې وویل:دوئ ستاسې ورونه دي ، ستاسې په دین دي ،دهمد ي دین پخاطر له خپل هیواد ، اوخپلو ټولوشمنیو محروم شوي ،دلته راغلي ، په تاس ي فرض دی چ ي له دوئ سره مرستې وکوئ ، رسول الله (ﷺ)له هغوئ وغو ښتل چ ي د انصارو هره کورن ۍ دې دمکي یوه کورن ۍ پخپله کورن ۍ کې ګډه کړي!! د"مواخات "او ورول ۍ مفهوم داندی چ ي یو څوک طفیلي اومفت خوروي ، یا د ي م ړلمه وي ، رسول الله (ﷺ)وفرمایل:په دي سره تاسې اوس دورې کورن ۍ په ځای یوه لویه کورن ۍ شوئ ددوه تنو په ځای دڅلورو تنو کورن ۍ شوئ، دواړه لوري به کار کوي!کله چې دکار کول ډېر وي نو عاید به هم ډېر وي !چې عاید ډېر شي ددواړو کونیو ګذراه به اسانه وي !هیڅ کورن ۍ به په بله بار نه وي ، ټولو په خوښه درسول الله (ﷺ) غوښتنه اومنله ، د"مواخات" نتیجه دا شوه ، چ ي دڅوسوه کورنیو دژوند چاري په لن ډ وخت کې جو ړي شوي ، وروسته دا سوال پاته نه و ،کومه کورن ۍ خوشحاله ده اوکومه نه !کوم ي پناه ورکړې او کومه له بیرون مهاجره راغلې ؟له دې مهم کاره چې رسول الله (ﷺ) وزګارشو ، یوه بل مهم کار ته یې پام وګرځاو ،دا چ ي تردغه مهال یعن ي درسول الله (ﷺ) دهجرت له زمان ي څخه وړاندې په مدینه منوره کې هیڅ دولت یا حکومت نه و ، هلته قبیلو ي نظام حاکم و، دن ږدې پنځویشت او ډېر شو په منځ کې قبیلې وي ، هره قبیله له بل ي ازاده اوخپلواک وه ، څنګه چ ي نن سبا حکومتونه اوسلطنتونه ازاددي ، هروخت به یې ترمنځ جګړونه وه ،زمون ږ تاریخ پوهانو لیکلې ، دمدینې منور ي انصار داوس اوخزرج په دوه قبیلو ویشلې وه! ددواړوترمنځ د یوسل شلو کلو دښمنې او جنګ و ، ښکاره ده کله چې ددوه قبیلو ترمنځ دښمنې وي دهغو ترمنځ دګډ حکومت جوړلو سوال نه پیدا کیږي ، مدینه کې د عربو پرته نور خلک هم میشت وه ، مثلا :دیهودو قبایل اوسیدل ، هغوئ زرشاوخوا کورن ۍ وي ، تخمیناً نیم ی یهود ان وه اونیم ی عرب ، په دې علاوه عیسایان هم وه ، چې کره شم ېر یې ند ی معلوم ، په یو روایت ۱۵ او په بل ۵۰ کورن ۍ وې چې داوس قبیلې دننه میشت وې.

په هرصورت دترمنځوې یو والی او اتحاد نه و ، داتصمیم ن ېول چ ي ټول په یوه ګډ حکومت کې یوځای شي ، په څرګنده خوب ل ېدل و ، خوا ړتیا ی ې احسا سوله، له دې وچې رسول الله (ﷺ) دمواخات له لارې دمهاجرینو دژوندانه ا ړتیاوو پوره کولو څخه وروسته یې دا ګام پورته کړ، چ ي د ټولو ډلو اوقبیلو استازي ی ې ځان ته وروغوښتل ، چې په هغوئ کې له مسلمانانو علاوه یهود هم وه ، په صحیح بخاري ک ي له انس (رضي الله عنه) څخه روایت دی : دا غونډه ذما دپلار په کورکې وه ، دیهودو استازي هم وه او دعربانو هم ، په عربانو ک ي داوس اوخزرج قبیلې د دواړو ،هم له اوس اوخزرج څخه دمسلمانانو استازي وه رسول الله (ﷺ) هغوئ ټولوته مخاطب شو(غالباً) (ول ي په صراحت سره ند ي راغلې چ ي دغونډې شروع له څه وشوه )اوس تاسې په څو قبیلو ویشل ي یاست،له یوبل ازادیاست ! ددې په نتیجه کې که په کومه قبیله له بهر د ښمن یرغل راوړي ، پاتې نور ي قبیلې او خلک ځانونه بیطرفه نیس ي ، هغه قبیله په یوائې اړه چې دد ښمن د ټول ځواک نه خپله دفاع وکړي ،

عین ممکن چې هغه قبیله شکست وخوري ، ځو
ورځې وروسته بله قبیله هم له ورته انجام سره مخ شي
داسې دریمه اوڅلورمه هم ، ددې په نتیجه کې به
تاسې ټول ددښمن په لاسو یو ،یو هلاک شئ ، ایا
مناسب نده ، چې ټول په ګډه یو حکومت جوړ کوئ ،
دګډ حکومت په شتون کې به دښمن له تاسو ډار
ولري، چې ذما دښمن یوه قبیله نه ، بلکې ګڼې قبیلې
دي ، اوټول په ګډه دفاع کوي ، تنها د ټولو قبیلو
دښمنې ګرانه ده ،دا به یو ګډ تړون او عهد وي چې
ددښمنانو دتیرې په وړاندې به دمالي او اجتماعي
ارزښتونو ساتندویه او ضامنه وه ، داچې رایه نهایتې
معقوله وه، ټولو په یوه غږ یالږ ترلږه لوی شمېر قبوله
کړه ،دلوی شمېر قید راول په دې صحیح دی چې په
همدې واقعه کې راغلي چې داوس قبیلې څلور
کورنۍ په پیل کې نه وي شریکې.

دمدینې دغونډې هدف یوازې دا نه و کوم
چې مابیان کړ، رسول الله (ﷺ) هغوئ ته وویل
:ستاسې ګډ ځواک به ستاسې ددفاع ضامن وي،
بلکې یو بل ډېر اهم څېزهم و کوم چې مونږ ددې
دستور دننه وینو او په کوم چې ګردو اتفاق هم کړی ،
هغه دا چې هري قبیلې ته دپخوا په څېر پر ګڼو چارو
کې بشپړه ازادي ورکړل شوه ، یوازې دځو څېزونو په
اړه صراحت وشو چې هغه ددې بې ځای چې یوازې ،
یوازې پرمخ ویوړل شي، ښه داده چې ټول پکې ګډه
ونډه ولري.

دمحاکمو اوعدالت په اړه تریوه ځایه پخوانی
قبایلې نظام پخپل حال پریښودل شو ، خو که قضیه
ددوه جلا قبیلو ترمنځ وه ، بیا به مرکزته رجوع کېږي ،
یعنې دجګړو په اړه قضایاوو کې دروستۍ پریکړې
به لپاره ښاري واکمن ته رجوع کېږي ، په ورته توګه
ددې خبرې یادونه هم شوي چې دمذهب په اړه به

ازادي وي ، یهودیان به په یهودیت ، مسلمانان به
پخپل دین (اسلام) ، وي یوه ثیقه ولیکل شوه ، کومه
چې لفظ په لفظ ترمونږ رسیدلې ،هغه ۵۲ مادې لري ،
پکې ښه تفصیل راغلی ،چې د کومو چارو سرته
رسول پکاردي ، زه ویلای شم دا دهغه مهال
داسلامي حکومت لیکلی دستوردی

اوس ما اشارتاً وویلې : چې پکې دتضمین
یادونه راغلې ، تعجب په دې ؛هغه اړتیاوي چې نن
شته ، پخوا نه وي او دتیرې زمانې اړتیاوي نن بې
ارزښته دي ، مدینه منوره کې درسول الله (ﷺ) په
ژوند کې دوه مسئلې دزیاتې د اهمیت وړ وي ،یو که
کوم سړي به په خطاء بل سړی قتل کړ، قاتل به اړ و چې
دمقتول وارثانو ته دیت ورکړي، دادوینې تویولو
بدل د ځایې رسم ورواج له مخې دومره ډېر و، چې
دقبیلو له سر درانو او شتمنو پرته نورو هغه نشوای
ورکولی ،بل که هره دغسې قضیه به پېښه شوه ، په
باب به یې اجتماعي تصمیم نیول کیده ،یعنې یوازې
قاتل به ذمه وار نه و ،بلکې دهغه ټوله کورنۍ به یې
ذمه واره ،چې دخپل تن له لوري دیت ورکړي ،
دویم شی چې په هغه زمانه کې ورته ضرورت و ، اونن
ورته نشته ، هغه دا چې که یو چا به خپل دښمن ونیو ،
قید به یې کړ ، هغه به یې دفدي په بدل کې پریښود ،
دافدیه هم ډېره زیاته وه ، یعنې سل اوښان به یې
فدیه ورکول ، که غریب سړی به ونیول شو ، دهغه
دخلاصون صورت به نه و ،هغه به دخپل دښمن لخوا
غلام وګرځول شو ، په داسې وخت کې دهغه
دخلاصون لپاره فدیه ورکول د ټولنې په ذمه وه ،
رسول الله (ﷺ) په مدینه منوره کې داسې انتظام
وکړ، چې په هره ، هره قبیله کې به یوه ټولنه وي، چې
دهرې قبیلې سړی ونیول شو یا د قتل په لړ کې ددیت
ورکولو اړتیاوه ،هغه به یې له ورکړي عاجزه و، دهغه

درېږدي خپل خپلوانو ټولنې به ور سره مرسته کو له ، که د هغوئ توان نه رسید ، له بلې ټولنې به يې مرسته غوښته ، که په هغه به هم ونشوه له بلې به يې کومک غوښته ، که ټول به بې وس شول نو له مرکزي حکومت يې مرسته غوښتله ، دايو ځانګړی عملي پلان و چ ي په مدينه منوره ک ي رسول الله (ﷺ) جوړ کې، او دمديرې په دستور کې يې هم يادونه راغلې .

حاصل داچ ي په رسم ي تو ګه دحديث ليکلو يو مثال دغه دمدني دستور وثيقه هم د ه، د لومړنيو کارونو څخه يو بل شی هم شته چ ي کله دمواخات نظام پلې شو، دمهاجرينو داستو ګنې چاري بشپړي شوي، بيا ښاري حکومت تاسيس شو، يعن ي يو داسې هيواد چ ي دهغه زمکن ی مسافت تريوه ښار محدود و، دهغه دننه دعدالت او انصاف په ګډون دټولو اړينو چارود بشپړولو وروسته رسول الله (ﷺ) په دي بسيا ونکړه، بلکې دمکې دګواښ په ځواب کې يې يو بل دفاعي ګام هم واخيست، هغه دا و : چې دمدينی منوري له شاوخواه سيمو يې ليدل پيل کړل ، مثلاً : دمدين ي منوري شمال ته لا ړ هلته ی ي ځايي قبايل قانع ک ړل : چې بيشکه تاسې يو ه ازاده قبيله ياست او خپلواکې موشته ، البته که کله له د ښمن سره مو مقابله راځي، نو يوا ځې به جنګيږئ، ايا غوره نده چ ي زمونږ او ستاسې ترمنځ يو تعاهد و شي، که پر تاسې هر د ښمن يرغل و کړي ، مونږ به ستاسې کومک ته راځو ، او که په مون ږ څوک حمله وکړي ، او مونږ تاسې غواړو ، تاسې به زمونږ مرستې ته را درومئ ، داخبره دهغوئ خو ښه شوه او له رسول الله (ﷺ) سره يې ګډ دفاعي تړون وکړ، دالوظنامه يا تړون ليکل شوی او په ليکلې بڼه ترمونږ رسيدلی ، بيا رسول الله (ﷺ) دمديرې منوري مشرق ته دروم ي ، بيا دجنوب په لور ځي ، غرض داچ ي پيلا بېلو جهتونه او سيمي يې و لېږدلي ، له هجرت وروسته ی ي دګڼو نامسلمانو قبايلو سره تړونونه وکړل ، چ ي داتړونونه په ليکلې بڼه شوي ، دا دلوم ړي وخت حالت و ، چ ي يو لورته دمديني دننه دامن وامان او يو والی چاري يې ډاډمنې ک ړي ، او هم ی ي دمديني شاوخوا دمل ګرو قبايلو جال خور کړ، که د ښمن ورباند ي حمله کوله ، هغه به دمديرې منوري په څنډو او پولو کې له ميشت قبايلو سره په جن ګ کيوت او مسلمانان به تري خوندي و ، دا يو سياسې تدبير و چ ي رسول الله (ﷺ) غوره کې، په ليکونو کې يې بيا بيا يادونه شوي .

وروسته نور داس ي ګڼ مواد په لاس راځې، چ ي په ليکلې بڼه دي ، له هغو څخه ځينې شخصي دي مثلاً : کله به رسول الله (ﷺ) ځانته کوم غلام واخيست، په ا ړه يې يو سند به وليکه چ ي دا غلام ما له فلاني... نه په دومره ... وپيره ، يا کله به رسول الله (ﷺ) يو غلام ازاد ک ړ، هغه ته به ی ي دازاديدو سند وليکه ... فلان ی شخص ځما لخوا ازاد دی ... ټول دي خبروي دغه تن ازاد دی... ، څوک يې نشي غلام ګرځولی ، داسې نور ... يو بل شی چې لږ وروستی دی ، غالباً دهجرت په ۸ م کال رسول الله (ﷺ) يو ه تن ته خط وليکه: څنګه تاته داپيغام ورسي سملاس ي که سهار او که ما ښام دزمزم او به دد ي سړي په لاس راولېږه ! هم داسې چ ي کله داسلام ي حکومت حدود پراخ شول دبېلا بېلو ولايتونو او سيمو دچارواکو په نوم پيغامونه لي ږل ! چ ي ...داو کړه ! ... دا مه کوه... کله به چارواکو پو ښتل په دي ا ړه څه وکړو ؟ ځواب يې له مديرې منوري څخه لېږل کېد ... غرض داچ ي رسم ي ليکونه ګڼ دي ، او س مهال دهغو شم ېر چ ي مونږ سره شته ل ږ ترلږه څلور سوه نبوي

لیکونه مونږ په لاس کې لرو ، په هغو کې دعوتې لیکونه هم شته :لکهٔ :قیصر او کسرا ته دا اسلام دعوت ورکول، ځنې حلفي تعاهدات هم دي او نور....

اوس د حدیث دویم ا ړخ ته را ځو یعنې هغه حدیث چې رسمې لیکونه ندي ، بلکې صحابه وو په شخصي تو ګه ترتیب او را ټول کړیدي، عام صحابه امیان وه ، په لیک لوست نه پوهیدل ، لیکن ربښتونې مسلمانان وه ،په مدینه منوره ک ې زیاتره وخت به درسول الله (ﷺ) په مجلس کې ناست وه ارشادات به یې اوریدل ، بیا به یې په هغو عمل کا و ، خو یوه واقعه پیښ ه شوه کومه چې غالباً د حدیث دتدوین دپیل زریعه شوه، یو صحابي راغی ، نوم یې ندی ښودل شوی ، په ترمذی کې حدیث شته ، هغه رسول الله (ﷺ) ته وویل :دا الله رسوله ! ته هره ورځ مونږ ته چې کوم څه بیانوي هغه ډېر په زړ پوري او ګټوردي ، خو ذما یاداښت کمزوری دی ، له ماذر هېرشي ؟رسول الله (ﷺ) هغه ته وفرمایل:استعن بیمینک (له خپل ښ ي لاس کومک واخله ) یعنې لیکل کوه ، غالباً هغه ددي اجازت وروسته لیکل پیل کړ ل ، داچې وروسته څ ه وشول؟ په دي اړ ه تفصیل نشته ، وروسته یوه بله واقعه چې هغه هم غالباً ددي حکم او د "استعن بیمینک" د الفاظو نتیجه ښکار ي هغه دعبدالله بن عمرو بن العاص واقعه ده نوموړ ی ځ وان و ، غالباً شپاړ س یا او ولس کلن و ، نهایتې ذهین او دیندار ه و ، دعلمې ذوق څښتن و ، دعلمې ذوق اندازه یې له دې څ خه کیږي چې سریانې ژبه یې هم یاد وه ، دعیسویانو انجیل به یې په سریانې ژبه لوست ، هغه ته رسول الله (ﷺ) اجازه ورکړ ې وه چې خپلو علمې هڅ و ته دوام ورکړ ي ، یعنې دعظیم الشان قرآن ترڅ ن ګ بایبل هم ولولې ، نو کله چې عبد الله بن عمرو بن العاص خبر شو چې فلاني ته رسول الله (ﷺ) وفرمایل: استعن بیمینک! هغه هم لیکل پیل کړ ل ، له رسول الله (ﷺ) څخه به یې چې څ ه اوریدل هغه یې ژر یاداښتول ، په دې کې دوه دری ورځې تیري وي ، ملګوو یې ورته وویل: عبدالله! څ ه کړ ي ؟ رسول الله (ﷺ) خو بشر دی کله خوشال وي کله خفا، ته دهغه هره خبره یا داښتوي ، دا مناسب نده ، که بل څ وک وای نو دهغوئ په دې خبره شاید وروسته شوی و ای، خو داچې نوموړ ی ښه ذهین و ، پخپله مخامخ یې له رسول الله (ﷺ) څخه وپوښتل: په ځ واب کې رسول الله (ﷺ) ورته وفرمایل خامخایې لیکه ، ددي وروسته هغه دپوره ډاډ لپاره و پوښتل کله چې ته خفه هم وي ؟ رسول الله (ﷺ) وفرمایل :سو ګند په هغه ذات دچا په وس کې چې ځما ساه ده له دې چې کومه خبره وځ ي هغه به حق وي ، څر ګنده وشوه چې عبد الله بن عمرو بن العاص په بشپړ ډ اډ سره لیکل ، له ځ ینو روایتونو جوتیږ ي چې دنوموړ ي دحدیثو مجموعه کې څ ه لس زره حدیث وه ، وروسته یې ځ وی بیا یې لمسې له هغې قلمي نسخې په مرسته نورو ته حدیث ښودل، ،عمرو بن شعیب بن عبد الله بن عمرو بن العاص مشهور محدث تیر شوی دی.

هم داسې یو بل مثال لرو: لکه ابو رافع یو ازاد غلام و ، یو ورځ له رسول الله (ﷺ) پوښتنه کوي :ایا زه ستا حدیث لیکلی شم ؟ رسول الله (ﷺ) ورته اجازه کوي ، هغه یوه مجموعه تیاره کړ ه ، بیا په ټولو کې ډېرثقه انس بن مالک (رضي الله عنه) دی ...نوربیا :

# د جدی ۲۸ مه

# د روحانیت پر ځلانده څېرو د کمونیستي خفاشانو ناترسه برید

قاري حبیب

۳۳ کاله وړاندې د ۱۳۵۷ هـ ل کال د جدي د میاشتې په ۲۸ نیټه هغه وخت چې اسلامي افغانستان د ساړه اقلیم او کمونیستي سره سیاست له یوې سختې مرحلې تېرېده ، د هیواد په زړه کابل او ځینو نورو سیمو کې خورا دردوونکې ماجرا پیښه شوه.

نیمه شپه وه ، په افغانستان کې د حضرت مجدد الف ثاني شیخ احمد سرهندي رحمه الله اولاده د قلعه جواد د حضراتو د کورنۍ اعضاء او متعلقین په کابل او د هیواد په بیلابیلو برخو کې په خپلو کورونو کې په خپل ذکر ، تهجد او وظایفو بوخت وو او یا د خوب په عالم کې وو ، چې ناڅاپه د کمونیستي رژیم د شیطاني استخباراتي شبکې ( اکسا ) ټانګونه او تور کرغېړن جیپونه وغوریدل ، سره له دې چې د ثور له کمونیستي کودتا وروسته د تورې شپې په ترورېمۍ کې د متدینو افغانانو په خلاف د دې اداري عملیات یو معمول ګرځیدلی وو ، او هره شپه ډلې ډلې متدین افغانان ، ملاامامان ، محصلین ، استادان ، طالبان ، قومي مشران او د افغان اولس نور زبده اشخاص نیول کیدل ، او د نامعلوم راتلونکي په لور وړل کیدل ، خو په دې شپه د دې کرغیړنې اداري د بدبخته کارمندانو عزائم غیرمعمول ناولي او خطرناک وو.

هو کې په دې شپه د کمونیست لومړي وزیر حفیظ الله امین په قومنده د اګسا مشر اسد الله سروري او مرستیال یې عزیزاحمد اکبري د یوه خورا ظالمانه پلان تطبیقولو ته ملا تړلې وه ، دوی امر ورکړی وو چې د افغانستان په ټولو ولایاتو کې دې د قلعه جواد د مجددي حضراتو د کورنیو غړي او متعلقین ونیول شي ، د همدې لپاره خو د حضراتو کرامو د نیولو لپاره په کابل ، هرات ، کندهار ، جلال اباد ، لوګر ، نجراب ، پنجشیر او کوهستان کې په یوه وار عملیات پیل شول.

د کابل د عملیاتو مشري اسد الله سروري په خپله په غاړه درلوده ، دې ظالم کمونیست له لسګونو عسکري جیپونو او عسکرو سره د کابل د خوشال مینې په قلعه جواد سیمه کې د ضیاء المشائخ حضرت محمد ابراهیم مجددي رحمه الله په کور او خانقاه هجوم ورووړ ، په نیمه شپه د حضراتو کرامو د کورنۍ ، ماشومان ، تورسرې او نارینه د خوب له بستر څخه راپاڅول شول ، او د

کابل په سخته یخنۍ کې یې دکمونیستي زندان په خوا رهي کړل شول.

**قضای مبرم**

دغزني ولایت اوسیدونکي مولوي صاحب خان محمد له خولې نقل کوي ، چې دهمدې صحنې شاهد پاته شوی ، دی وایي زه له غزني څخه دحضرت صاحب متعلقینو کابل ته دحضراتو کرامو دحال اخیستلو لپاره واستولم ، او بل دا چې په دې حالاتو کې دحضرت صاحب مشوره او لارښوونه ترلاسه کړم ، په همدې شپه چې کمونیستانو په قلعه جواد برید وکړ ، زه هم هلته وم ، نیمه شپه حضرات کرام دکمونیستانو لخوا عسکري جیپونو ته وخیږول شول ، په دوی کې جناب رئیس صاحب ( حضرت اسمعیل مجددي ) خورا مطمئن وو ، او بې له کوم تأمل څخه له کمونیستي عسکرو سره روان شو او موټر ته وخوت ، زه هم په همدې صحنه کې حاضر وم خو مشر حضرت صاحب ضیاء المشائخ مجددي ډیر خپه وو په همدې وخت کې ماته رانږدې شو او څو خبرې یې راته وکړې ، مجاهدینو ، علماء او خپلو مریدانو ته دپیغام په توګه یې راته وویل چې دوی ته ووایئ چې هیڅکله جهاد پرې نږدئ ، جهاد ته ادامه ورکړئ ، په همدې رابطه یې څو نورې خبرې هم وکړې ، په دې وخت کې چې رئیس صاحب دمشر حضرت صاحب ځنډیدل ولیدل ، نو له موټره یې ورته راغږ کړل چې ( بیا باباجان ! قضای مبرم است ) یوازې همدا جمله یې وویله او حضرت صاحب په چټکو ګامونو دموټر په خوا ور روان شو.

د جناب رئیس صاحب له دې جملې او اطمینان څخه داسې ښکاري چې کیدای شي هغه ته له وړاندې دخوب لیدلو یا الهام په طریقه دخپل مظلومانه برخلیک او شهادت زیری ورکول شوي وي ، څرنګه چې دالله تعالی رښتیني بندګان دالله تعالی په لار کې شهادت ترټولو ستره کامیابي او سعادت بولي نوځکه ورته داسې خوشاله وو او په پوره اطمئنان ور روان وو.

**په دې شپه څوک ونیول شول**

په همدې شپه نه یوازې دکابل دحضرات کرامو دکورنۍ ټول غړي حتی دښځو او ماشومانو په ګډون ونیول شول چې ښځې او ماشومان وروسته بیرته خوشي شول بلکې دهیواد په نورو برخو کې هم دهمدې کورنۍ ډیر کسان ونیول شول ، هغه معلومات چې تراوسه نشر شوي دي دنیول شویو افرادو نومونه په لاندې ډول ښیي.

**په کابل کې نیول شوي حضرات**

1- حضرت مولانا ضیاءالمشایخ محمدابراهیم المجددی ابن نورالمشائخ فضل عمرمجددي رحمهماالله تعالی دطریقه عالیه نقشبندیه مرشد او دافغانستان په سطحه ترټولو لوی متبحرعالم.

2- حضرت محمد اسماعیل مجددی بن حضرت ضیاءالمشایخ مجددي ، مشهور په رئیس صاحب دنورالمدارس فاروقیه مدرسې رئیس او دخدام الفرقان اسلامي نهضت مؤسس.

3- حضرت محمد اسحق مجددی بن حضرت ضیاءالمشایخ رحمهماالله ( استاد )

4- دوکتور محمد یعقوب مجددی بن حضرت ضیاءالمشایخ

5- حضرت ضیاءاحمد مجددی بن حضرت ضیاءالمشایخ په صدارت کې مأمور.

6- حضرت فضل محمود مجددی دمشر حضرت صاحب زوم

7- حضرت احمد سعید مجددی دمشر حضرت صاحب خوریې

8- حضرت احمد مسعود مجددی دمشرحضرت صاحب خوریې

9- حضرت احمد مودود مجددی دمشر حضرت صاحب خوریې

10- حضرت احمد شعیب مجددی دمشرحضرت صاحب خوریې

11- داکتر محمدعزیز مجددی بن اشرف جان مجددی

12- حضرت هدایت الله مجددی پسر اشرف جان مجددی

13- حضرت علی احمد مجددی مشهور په بزرگ جان آغا.

14- حضرت داکتر محمد عظیم مجددی، طبیب.

15- حضرت ذکر الله مجددی بن حضرت صاحب میاجان آغا، انجنیر.

16- حضرت غلام داود مجددی مشهور په بابا جان آغا.

17- حضرت رفیع الله مجددی بن حضرت بابا جان آغا مأمور

18- حضرت ضیاءالله مجددی بن حضرت بابا جان آغا، مامور

19- حضرت محمد یحیی مجددی بن کبیرجان آغا، متعلم.

په لوګر کې نیول شوي حضرات

20- محمد سلیم بن غلام نقشبند مجددی

21- عطامحمد بن غلام نقشبند مجددی

په هرات کې نیول شوي حضرات

22- حضرت عبدالباقی مجددی، سناتور.

23- حضرت عبدالصمد مجددی، ولسوال.

24- حضرت فضل حق مجددی.

25- حضرت علی محمد مجددی.

26- حضرت محمد انور مجددی.

27- حضرت عبدالقدیر مجددی.

28- حضرت نجیب الله مجددی، متعلم.

29- حضرت حضرت الله مجددی، متعلم.

30- حضرت ضیاءالله مجددی بن احمدسعید جان مجددی، متعلم.

په کوهستان کې نیول شوي حضرات

31- حضرت مولانا شاه عبدالحمید مجددی مشهور په حضرت صاحب کوهستان.

32- حضرت محمد موسی جان بن عبدالحمید مجددی.

33- حضرت صاحب نورالحق مجددی مشهور په آغا بایی.

34- حضرت عصمت الله مجددی.

35- حضرت غلام حسن مجددی.

36- حضرت عبدالستار مجددی.

37- حضرت حبیب الله مجددی.

38- حضرت فیض احمد مجددی.

39- حضرت فضل ربی مجددی.

40- حضرت عبدالستار بن غلام ربانی جان آغا مجددی.

41- حضرت عبدالکریم مجددی.

42- حضرت میان احمد آغا مجددی.

43- حضرت آغاګل بن ګل آغا جان مجددی.

په پنجشیر کې نیول شوي حضرات

44- حضرت نعیم بن غلام قدیر آغا مجددی

45- حضرت میا آغا مجددی

46- حضرت یوسف آغا مجددی
47- حضرت محمد قاسم مجددی
48- حضرت شمس الحق مجددی
49- حضرت سراج الحق مجددی
50- حضرت محمد ادریس مجددی
51- حضرت میان آغا بن میان خورشید مجددی
52- حضرت محمد نسیم فرزند میان عبدالقادر مجددی
53- حضرت محمد یوسف بن امین الدین مجددی
54- حضرت حضرت جان آغا بن فرخ جان آغا مجددی
55- حضرت معصوم جان بن حضرت جان مجددی

په نجراب کې نیول شوي حضرات

56- حضرت عبدالجبار مجددی
57- حضرت غلام قیوم مجددی
58- حضرت مولوی شیرین آغا
59- حضرت قاری فضل ربی مجددی بن غلام ربانی مجددی
60- حضرت عبدالحق مجددی بن غلام ربانی مجددی

په جلال اباد کې نیول شوي حضرات

**61**- حضرت غلام احمد مجددی سترعالم او د طریقت مرشد
62- حضرت حسن احمد مجددی
63- حضرت سید مسافر مجددی بن غلام نبی مجددی
64- حضرت خان پاچا بن غلام نبی مجددی

په کندهار کې نیول شوي

65- عبدالسلام مجددی
66- امام الدین مجددی
67- ولی محمد مجددی.

په لوړ یادو شویو کسانو سربیره دحضراتو دکورنیو واړه ماشومان هم دکمونیستانو لخوا ونیول شول او زندان ته واچول شول ، خو هغه چې عمرونه یې ډیر کم وو بیرته خوشي شول ، مګر دلوړو یادو شویو حضراتو له نیول کیدو وروسته بیا هیڅ معلومات نه دي شوي ، غالب ګومان دادی چې کیدای شي دغه ۷۷ تنه ټول به دکمونیستي جابرانو لخوا په شهادت رسول شوي وي.

**ددې ستر جنایت عاملین څوک وو**

سره له دې چې ټول کمونیستان او دهغه مهال کمونیستي رژیم له اسلام ، دیني علم ، تصوف او روحانیت سره خلاف وو او په ټول قوت سره یې هڅه کوله چې له افغانستان څخه اسلامي فکر محوه کړي ، خو دا چې دحضراتو کرامو دکورنۍ په وړاندې په مباشر ډول چا او کومو کمونیستانو په دې جنایت او تجاوز کې لاس درلود ، نو له وروستیو پلټنو او رابرسیره شویو معلوماتو څخه داسې ښکاري ، چې د ډیرو نورو جنایاتو غوندې ددې کار امر دکمونیستانو لومړي وزیر حفیظ الله امین ورکړی وو ، چې داستخباراتو دسازمان مشر اسدالله سروري او معاون یې عزیزاحمد اکبري ترسره کړل.

د شوروی داستخباراتو دادارې کي جي بي یو وروستی لوڅ شوی سند ښیي ، چې دغه کار دحفیظ الله امین په امر اسدالله سروري ترسره کړ ، دا سند چې فارسي ته ترجمه شوی او دحفیظ الله امین له پټو معاملو او جنایاتو پرده پورته کوي په یوه برخه کې یې راغلي ( . امین همچنان سروری را مجبور ساخته بود از پول به دست آمده از بابت فروش ملکیت های ضبط شده از کسانی که یک جا

با خانواده های شان توسط «اگسا» دستگیر وسر به نیست می شدند، به وی وبرادرش زاده اش اسدالله امین سهم بدهد. م رکز رهنمایي معاملات درکابل جهت فروش چنین ملکیت های ضبط شده ایجاد شده بود وعاید حاصله ازآن به کیسهٔ امین سرازیرمی شد. سروري مبلغ چهار میلیون افغانی، 800 سکه طلا یي و 12 صندوق زیورات زنانه که ازاعضای خانواده مجددی روحانی مشهور به دست آمده بود نیز به امین انتقال کرد ) دغه رنګه دهغه وخت دخلقیانو دحکومت دمخابراتو وزیر سید محمد ګلابزوی هم له ګوربت مجلې پرلپسې ۳۵ ګڼې سره په مرکه کې منلې ده چې دغه کار دحفیظ الله امین لخوا ترسره شوی دی.

۷ کاله وړاندې چې کله په کابل کې داګسا همدغه پخوانی مشر اسدالله سروري دمحاکمې میز ته ودرول شو، نو دکابل دحضراتو دکورنۍ اوسني مشر حضرت احمدامین جان مجددي په نوموړي باندې ګواهي وویله او سروري یې ددې جنایت اصلي عامل وباله، حضرت امین جان اغا چې هغه مهال ماشوم وو او خپله هم نیول شوی وو خو وروسته بیرته خوشې شو وویل چې په هماغه شپه چې د ۱۳۵۷ دجدي ۲۸ مه دجمعې شپه وه په خپلو سترګو یې اسدالله سروري ولید چې له نورو عسکرو سره یوځای یې ددوی په کورنۍ برید وکړ، دخانقاه دروازه یې ماته کړه، او حضرات کرام یې ټول ونیول او زندان ته یې یووړل، نوموړي وویل چې اسدالله سروري له تیرو څو کلونو راهیسې بندي دی خو تراوسه رسما محکوم شوی نه دی، او ددې په خاطر چې دشهیدانو ورثه خوشاله شي باید اسدالله سروري ته داعدام سزا ورکړل شي.

دکرزي حکومت یوې ابتدایه محکمې په ۲۰۰۵ م کال کې اسدالله سروري ته داعدام سزا واوروله، خو کله چې په نیویارک کې دبشري حقوقو یوې ډلې دامحاکمه غیرعادلانه او دسروري



په حق کې تیرې وباله نو دکرزي حکومت هم له هغه راهیسې په دې مسئله خاشه اچولې او سروري ته تراوسه څه نه دي ویل شوي.

که هرڅه وه او هرڅوک وو، خو دکمونیستانو دې جنایات افغان بې څوکه اولس اوبې کسه وطن ته خورا ستر او نه جبرانیدونکی زیان واړاوو، مجددي حضرات کرام دافغانستان په سطحه هغه خلک وو، چې ددین په اصلي منابعو قران او حدیث هم علما پوهیدل او هم یې عملا په ځان تطبیق کړي وو، دوی دارشاد، علم او عرفان سرشار منابع وو، چې نه یوازې یې دټولنې په اصلاح کې ستر رول درلود، بلکې دهیواد په سطحه یې په سیاسي کچه په چارواکو هم سترنفوذ درلود، همدوی وو چې هیواد یې دامان الله خان له سیکولرستي فتنې نه وژغوره، دانګریزانو په خلاف یې دجهاد او ازادۍ توغ هسک کړ او په وروستیو لسیزو کې یې ظاهرخان او داود خان ته پرلپسې ګوشمالي ورکوله، او له راتلونکو خطراتو یې خبرول.

الله تعالی د ې په دوی خپل بې پایه رحمتونه نازل کړي، امین ۲۲/۱/۲۰۱۳ میلادي

عبدالرؤف "حکمت"

# څوشیبې دکندهار له مجاهدینو سره

د روان ۲۰۱۳ م کال دجنورۍ په ۵ نیټه دکندهار دټولو ولسوالیو او دجهادي مسؤلینو او مجاهدینو یوه ستره ناسته رابلل شوي وه ، چې دالصمود مجلې همکار هم په کې شرکت درلود ، ددې مشورتي او تربیتي ناستې په ضمن کې دالصمود مجلې همکار دکندهار دځینو ولسوالیو له جهادي مسؤلینو سره دزړه خواله هم کړې دي ، چې ددې ولایت دبیلابیلو سیمو په اړه دهغوی توضیحات دلنډو څرګندونو په بڼه رانغاړو . اداره

## ژړۍ ولسوالي

ژړۍ ولسوالي دکندهار ښار په لویدیځ کې دکندهار هرات دلویې لارې جنوبي اړخ ته پرته ده ، دا ولسوالۍ چې دسنګ حصار سیمه یې دطالبانو داسلامي تحریک دلومړني پاڅون سیمه بلل کیږي ، دنلغام ، پاشمول ، ماکوان ، سنګ حصار ، سنځري او نادي په نومونو څو پراخې او ګڼ میشته سیمې لري.

ژړۍ لکه څنګه چې د شوروي ضد جهاد په مهال دمجاهدینو یو مشهوره کمین ګاه وه ، دامریکا خلاف جهاد په مهال هم دمجاهدینو یوه مهمه عملیاتي سیمه وه ، ددې ولسوالۍ دپاشمول او سنګ حصار ساحې دامریکایي کتارونو او ځمکنیو قواوو لپاره خورا خطرناکې سیمې بلل کیږي ، چې په تیرو لسو کلونو کې په کې امریکایانو خورا درانه تلفات ګاللي دي.

امریکایان او کناډایان چې په دې سیمه کې له سختو تلفاتو سره مخامخ شول ، په پای کې اړ شول چې دولسوالۍ په ساره او اوږده کې دامنیتي کمربند یوه خورا نادره ، ظالمانه او پُر مصرفه نقشه پلې کړي ،امریکایانو څوکاله وړاندې په دې سیمه کې دعملیاتو په مهال په ژړۍ کې طولا او عرضا اوږده اوږده سرکونه ، زابوران ، پاخه دیوالونه او اغزن سیمونه وغځول ، او په لسګونو دخارجي او داخلي عسکرو پوستې یې په کې جوړې کړې.

ژړۍ چې امریکایانو په کې په خورا درنو قربانیو پوستې جوړې کړې ، دمجاهدینو دهڅو په برکت له څوکلن امریکایي ستم وروسته دامریکایانو دخورا عبرتناک شکست او شرمینده تیښتې شاهده ده.

دژړي مجاهدین وايي چې د تیر پسرلي راهیسې امریکایان دژړي په مربوطاتو کې له کابو ۲۱ قرارګاوو څخه تښتیدلي دي ، دا ټولې هغه قرارګاوې دي چې امریکایانو یې په اړه پخوا ویل چې بیا به کله هم ترې په شا نه شي ، او چې په څومره قربانیو یې نیولې په همدومره قیمت به یې وساتي.

دژړي هغه قرارګاوې چې امریکایان ترې تښتیدلي په لاندې ډول دي.

په نلغام کې دمکتب ، کاکړانو ، عبدالعلي کلا ، سرکلي ، کډرو او میرولیانو قرارګاوې.

په سنګ حصار او کولک کې د دارو خان غونډۍ ، کوټیزو ، شکار غونډۍ ، سرټک ، دکولک او سنګ حصار دمابین او دوزیرو دسیمې دوه قرارګاوې.

په پاشمول کې کې دملایانو ، ډګر ، شکورغونډۍ او پانیزو قرارګاوې.

په سنځري کې دشوغې ، کلاوک ، او عیدګاه دسیمې قرارګاوې ، دغه راز له نادي څخه یوه او له ماکوانو څخه دری قرارګاوې په تیښته مجبورې شوې دي ، دیادونې وړده چې په یادو قرارګاوو کې ځینې امریکایانو یو مخ خالي کړې او په ځینو کې یې داخلي سرتیري پرې ایښي دي.

په ژړي کې امریکایان اوس دسیاچوی ، نلغام ، غونډۍ ، حوض مدد ، مرکز او سنځري په سیمو کې مجموعا شپږ قرارګاوې لري ، او داسې معلومیږي چې ښایي له هغو څخه هم لاړ شي.

دژړي مجاهدین وايي چې په تیر کال کې یې په مختلفو عملیاتو کې دښمن ته خورا درانه زیانونه اړولي دي ، او اوس چې له سیمې د دښمن زیاتره قواوې وتلې دي ، نو په دې جهادي سیمه کې دیوه مهم جهادي تحول هیله کیږي ، که څه امریکایانو دژړي په ځینو ساحو کې اربکیان جوړ کړي خو داچې اربکیان ټول شریر او بدنام خلک دي ، نوکوم اولسي ملاتړ نلري بلکې دسختو ظالمانو کړنو ، غلاوو ، تجاوزاتو او عامه اذیت له امله یې سخت اولسي قهر راپارولی دی ، چې همدا ظالمانه چلند خپله ددوی دزوال اسباب برابروي.

## ډنډ ولسوالي

ډنډ ولسوالي چې دکندهار ښار سره جوخته پرته ده ، په تیرو یوولسو کلونو کې یوه له پیښنو ډکه سیمه او دمجاهدینو قوي سنګر پاته شوی دی ، دا ولسوالي چې دشورویانو دیرغل په مهال مجاهدینو په کندهار ښار دټوپ دتختې په توګه ترې استفاده کوله ، دامریکایي ضد جهاد په مهال له ستراتیژیک لیدلوري یو مهمه سیمه بلل کیږي ، له همدې امله امریکایانو ورته فوق العاده توجه کوې او په لسګونو قرارګاوې یې په کې ځای په ځای کړې دي.

د ډنډ ولسوالۍ مجاهدین وايي چې همدا اوس دناخونې ، خنجکک ، زله خان ، چلغور ، نوده میربازار او په نورو سترو سیمو کې مجاهدین قوي حضور لري ، په همدې سیمو کې امریکایي قرارګاوې هم شته ، خوا امریکایان په خپلو اډو کې دننه یوازې خپل ځان ساتي.

د ۲۰۱۲ م کال په لړ کې په ډنډ کې دامریکایي پوځیانو شمیر دپخوا په پرتله کم شوی دی ، خو قرارګاوې یې خالي شوې دي ، داسې ویل کیږي چې دژړي ، او میوند له ولسوالیو څخه

دامریکایانو له وتلو وروسته دکندهار ښار له ګاونډیو ولسوالیو لکه ډنډ او ارغنداب څخه امریکایي ځواکونو په وتو دي.

په ډنډ ولسوالۍ کې امریکایانو له تګ وروسته دخپل ځایناستو په توګه داربکیانو داستخدام ډیره هڅه کړې ، او حتی خلک یې په زور مجبور کړي دي چې اربکیان شي ، خو څرنګه چې دډنډ خلک خورا مجاهدصفته خلک دي نو ځکه یې داربکي سازۍ پروژه رټلې ده ، په ډنډ کې یوازې دصلاوات په کلي کې کم شمیر محدود اربکیان شته او په نورو سیمو کې شتون نلري.

## معروف ولسوالي

معروف ولسوالي چې دکندهار ولایت په ختیځ کې پرته ده ، یوه لویه ولسوالي ده ، ددې ولسوالۍ تقریبا ټولې سیمې ازادې او دمجاهدینو تر واک لاندې دي یوازې یې به مرکز او دسالسون په علاقه کې ددښمن یو څه کسان شتون لري ، په دې ولسوالۍ کې امریکایانو پخوا یوازې دولسوالۍ په مرکز کې قرارګاه درلوده ، سږکال دوی له هماغې قرارګاه څخه هم وتښتیدل او یوازې دګوتو شمیر عسکر او مشاورین یې په ولسوالۍ کې پاته دي.

ددې لویې ولسوالۍ پراخې علاقې لکه دعلیزو ناوه ، سامي غر ، دساکزو علاقه ، اعلی جرګه ، پیتاوی او نورې پراخې سیمې ددښمن له شتون څخه پاکې شوې دي او په بشپړډول دمجاهدینو تر واک لاندې دي.

دمعروف ولسوالۍ دسالسون په سیمه کې یو څه شمیر اربکیان شتون لري ، چې هغه هم په خپلو پوستو کې ګوزاره کوي او دمجاهدینو په وړاندې د خنډ جوړولو جوګه نه دي.

دمعروف دمسؤلیینو په دې ولسوالۍ کې ۳۲ ډلګۍ مجاهدین فعالیت لري چې په پنځو محاذونو کې تشکیل شوي دي ، دتیر کال په ترڅ کې که له یوې دد شمن کمپله له دې ولسوالۍ څخه ټوله شوې له بلې خوا ورته دسر او مال درانه تلفات هم اوښتي ، له تیر پسرلي راهیسې په دې ولسوالۍ کې یوازې ۷ تنه مجاهدین په شهادت رسیدلي دي.

## بولدک ولسوالي

بولدک ولسوالي چې دکندهار اجیر چارواکي یې دخپل ځواک او سلطې ترټولو مثالي سیمه بولي ، حقائق په کې له هغه ډیر بدل دي چې دوی یې دعوه کوي ، ددې ولسوالۍ هیڅ داسې سیمه نشته چې هلته دې مجاهدین پټ یا ښکاره



شتون ونلري او عمليات دې په کې نه وي شوې.

دبولدک او ويش په ښار سربيره چې مجاهدين په کې چريکي بريدونه او په چاروا کو هدفي چاودنې کوي، دبولدک په نورو ساحو لکه ونکه، کنجسو، چلگزي، ناوه، رباط او نورو ټولو سيمو کې مجاهدينو قوي حضور لري او دښمن يې يوازې دخپلو قرارگاوو او پوستو دننه ژوند کولو ته اړ کړی دی.

په بولدک کې امريکايان همدا اوس دکڅي زيارت، لقمان او دبولدک په مرکز کې قرارگاوې لري، د بولدک دناوې له سيمې څخه ددوی يو مهمه قرارگاه سږ کال تښتيدلې ده، او دنورو دتيښتې اوازې هم دي، داسې معلوميږي چې امريکايان په بشپړ ډول له کندهار او نور افغانستان څخه خپله بستره ټولوي.

په بولدک ولسوالۍ کې دښار په شاوخوا کې دپوليسو او سرحدي عسکرو يو څه پوستې شته خو اربکيان په دې ولسوالۍ کې شتون نلري.

په تيرکال کې په نورو ګڼو کارونو سربيره يو دياد وړ کار دبولدک په ولسوالۍ کې د پوليسو ديوې مکملې پوستې ختمول وو چې ۱۳ تنه پوليس په کې له منځه لاړل.

مجاهدينو خپل ملګری په دې پوسته کې داخل کړی وو، چې يوه شپه يې له فرصت په استفاده دپوستې ټول کسان لومړی بې هوښه کړي او بيا له منځه وړي وو.

په تيرکال کې په بولدک کې څو بريالي فدايي بريدونه هم وشول چې ددښمن دسر خلک په مړه او ټپيان شول.

## خاکريز ولسوالي

د خاکريز ولسوالي چې دکندهار ښار شمال ته پرته ده، دکندهار له ګڼ نفوسه سيمو څخه شميرل کيږي، په وروستيو څو کلونو کې دا ولسوالي دامريکايانو دسختو عملياتو شاهده پاته شوې دې او امريکايانو پکې ګڼ شمير قرارگاوې جوړې کړې وې، د تېر ۲۰۱۲ م کال په ترڅ کې دکندهار دنورو سيمو غوندې په خاکريز ولسوالۍ کې دجهاد په ګټه خورا مهم تحولات رامنځته شول، دولسوالۍ زياتره جغرافيه دامريکايانو او داخلي ګوډاګيانو له سپيره وجود څخه پاکه شوه.

دخاکريز ولسوالۍ مسؤل مجاهدين وايي، په تير کال کې امريکايان او داخلي عسکر دولسوالۍ له مطلق اکثريت سيمو څخه تښتيدلي دي، دبيلګې په توګه په چينار سيمه کې ۱ دامريکايانو قرارګاه ۱۵ دداخلي عسکرو پوستې، په لام سيمه کې ۱ دامريکايانو ۵ دداخلي عسکرو قرارګاوې، دغه راز ۱ له ناصرو سيمې او ۱ له ښکته باغکې سيمې نه تښتيدلي دي، چې په دې سره دخاکريز ولسوالۍ ۷۰ فيصده ساحه په مطلق ډول دمجاهدينو لاس ته لويدلې ده.

په خاکريز کې امريکايان او داخلي عسکر اوس يوازې دولسوالۍ په مرکز، باغکه او ډب کاريز په نامه کليو کې پاته دي، نور دخاکريز پراخې ولس ميشتې سيمې لکه چينارو تنبيل، کاريزونه، لام، لخشکان او ناصر په بشپړ ډول دمجاهدينو ترسلطه لاندې دي.

دخاکريز دمجاهدينو په وينا له دې سيمې دامريکايانو سړنۍ تيښته داسې عبرتناکه او

تاریخي وو چې د تیښتې په مهال یې ۱۸ ټانګونه او ۲ او د داخلي عسکرو رینجر موټر به ماینونو وختل او له منځه لاړل ، تردې چې وروسته دوی مجبور شول عمومي لاره پرېږدي او په دښتو او شېلو کې یې یوازې دځان ایستلو لپاره نوې لاره جوړه کړه ، دوی خپلې هغه قرارګاوې چې په ډېر تکلیف یې جوړې کړې وې په بمونو والوزولې او په دې توګه دتل لپاره له سیمې وتښتیدل.



امریکایان چې د چینارو تنبیل او لام په سیمو کې یې په ځینو خلکو د داربکیانو په نوم وسلې ویشلې وې دامریکایانو له تیښتې وروسته دغه کسان چې شمیر یې تر ۱۰۰ تنو ډېر وو ټول له وسلو او ټولو امکاناتو سره مجاهدینو ته تسلیم شول ، په دې توګه دخاکریز په دې ټولو سیمو کې هرډول مشکل له منځه لاړ ، او اوس یوازې دولسوالۍ په شاوخوا کې څوتنه اربکیانو شتون لري.

دخاکریز مجاهدین وایي چې تیر کال ددښمن لپاره له سختو تلفاتو ډک وو ، خو دمجاهدینو په خوا کې ۱۲ تنه په شهادت رسیدلي دي.

## میانشین ولسوالۍ

میانشین ولسوالۍ هم دکندهار په شمالي برخه کې پرته ده ، دا ولسوالۍ له تیرو څو کلونو راهیسې بشپړه دمجاهدینو په لاس کې ده ، یوازې له تیر کال راهیسې یو شمیر خارجیان او داخلیان د دې ولسوالۍ یو لرې پراته کلي سرناوې ته چې له شاولیکوټ سره سرحد لري راغلي دي ، او یوازې تر ۲۰ پورې شاوخوا کورونو یې تر حکومت لاندې ساتلي دي ، دمیانشین زړه ولسوالي دمجاهدینو په لاس کې ده ، دښمن همدې نوي مرکز ته هم اکمالات دهوا له لارې کوي خو یوازې ددې په خاطر یې دغه ځای ټینګ کړی ترڅو ثابته کړي چې په میانشین ولسوالۍ کې حضور لرو.

د میانشین ولسوالۍ لپاره دمجاهدینو مسؤلین وایي چې څرنګه په شاولیکوټ کې ددښمن حضور په نشت حساب دی نوځکه دامارت لخوا د شاولیکوټ ولسوالۍ لوړې برخې هم دمیانشین دمجاهدینو مربوط شوي دي ترڅو په دې سیمه کې دکندهار -روزګان په سرک په پرتو پوستو باندې عملیات وکړي.

دشاولیکوټ په دې سیمه کې په سرک باندې دسفور او او باختو تنګي په سیمو کې ددښمن پوستې پرتې دي ، په همدې سیمو کې مجاهدینو په تیر کال کې ددښمن ۵۰ ټانګونه به بمونو الوزولي دي چې دروند دسرزیان یې ورته اړولی دی.

## میوند ولسوالي

میوند ولسوالي دکندهار ښار لویدیځ ته دکندهار ــ هرات په لویه لاره پرته ده ، دا ولسوالۍ په دوو لویو ساحو ویشل شوې ده ، چې د لوی سرک شمال خوته دګرماوک سیمه ده او جنوب اړخ

ته دقلعه شامیر او بند تیمور سیمې دي ، دمیوند ولسوالۍ دبند تیمور په استقامت یوازې په لوی سرک باندې څو پوستې شتون لري نو دغه علاقه له سرک څخه نیولي بیا مخ په جنوب ریګ پورې ټوله دد ښمن له شتون څخه پاکه او دمجاهدینو ترولکه لاندې ده ، دسرک په جنوبي اړخ کې یوازې قلعه شامیر سیمه هغه سیمه ده چې د ښمن دد رست میوند په سطحه ډیر حضور لری او تریوه حده یې ترتسلط لاندې ده.



په قلعه شامیر کې امریکایانو په ۲۰۱۰ م کال کې سخت عملیات وکړل او دلته یې تر ۴۰ پورې



دداخلي او خارجي عسکرو پوستې جوړې کړې ، په دې سیمه دوی دپوستو کمربند راګرځولی دی او په ډیره کمه سیمه کې یې خورا ډیر عسکر ځای په ځای کړي دي ، خو له دې سره سره مجاهدین په دې سیمه کې بیا هم فعالیت لري او په دښمن باندې چاودنې او چریکي بریدونه ترسره کوي.

دمیوند په شمالي برخه کې دښمن یوازې په هغه سرک باندې شتون لري ، چې له عمومي سرک څخه مخ په شمال دمیوند ترشهیدانو پورې تللی دی ، له دې سرک پرته نور دمیوند شمالي برخه چې په ګرماوک سره یادیږي په کامله توګه ازاده او دښمن په کې هیڅ شتون نلري.

په میوند ولسوالۍ کې په تیر کال کې دامریکایانو ۲ قرارګاوې دګرماوک له سیمې تښتیدلي او وطن ترې خلاص شوی ، یوه خورا ستره او مرکزي قرارګاه یې دملنګ کاریز له سیمې تللي ده ، دغه راز یې له فیض اباد نه هم یوه قرارګاه تښتیدلې ، په ټوله کې میوند ولسوالي هم هغه سیمه چې په تیر کال کې امریکایانو عملا ترې په تیښته پیل کړی دی ، چې دخارجیانو په تیښته سره سیمه دمجاهدینو ترسلطې لاندې راځي

# په تېر ۲۰۱۲م کال کې دملکي تلفاتو مستند ارقام

سيد سعيد

تېر (۲۰۱۲ز) کال هم دنوروکلونو په څېر په افغانستان کي ديرغلگروځواکونواوکابل لاسپوڅي رژيم په بمباريو، چاپواو ډزوکي ګڼ شمېرولسي هيوادوال بنديان ،ژوبل او شهيدان شول. په دې ليکنه کي دملکي ځاني تلفاتواومالي زيانونوهغه ارقام درته وړاندي کوو، چي په بيلابيلو نړيوالواوکورنيو رسنيوکي خپاره شوي دي.

## جنوري :

دجنوري پر ۲مه نېټه دامريکايې ځواکونو په بمباريوکي د هلمندولايت دموسى کلاولسوالۍ ددوآب دګوبرپه کلي کي «اته »کسه ملکي هيوادوال شهيدان شوي اويوشمېرنورټپيان شوي دي.دسيمه ييزوخلګودوينا په اساس په همدې بمباريو کي درانه مالي تاوانونه هم ورته سيدلي دي.دجنوري پر ۸مه نېټه يرغلگروځواکونودلغمان ولايت دعليشنګ ولسوالۍ په سايګل دره کي دعاموخلکوپرکورنويرغل اوبمبارکړې چي په ترخ کي يې دسيمي خلګوته زيات مالي زيان اوښتى دى اوعلاوه پردې «دوه» تنه هيوادوال ژوبل شوي هم دي.دجنوري پر ۱۷مه نېټه امريکايانودنيمروزولايت دخاشرود ولسوالۍ دآوبخش په سيمه کي دملکي خلګوپرکورونوچاپه وهلې اوبيايې « درې »کسه ولسي وګړي - چي درې واړه وروڼه وو- شهيدان کړي او «څلور»تنه ملکي هيوادوال يې اسيران کړي دي .دجنوري پر۱۸مه نېټه نيواکګرودشپينوعملياتوپه لړکي دکونړولايت د خ وکۍ ولسوالۍ دديوه ګل درې په اندرلچک کلي کي دملکي خلګوپرکورونودچاپې پرمهال «اووه »تنه ولسي وګړي شهيدان کړي دي.په شهيدانو کي «دوه »ماشومان «يوه »ښځه او«يو»تن سپين ږيرى هم شامل دي.دکونړاوکابل بلواکوچارواکوهم په دغه پيښه کي دملکي خلګودتلفاتو يادشوى شمېرتائيدکړى اوسيمي ته يې دتېرپه څېردتحقيقاتو په موخه ! ايلټونکى ټيم ليږلى دى.دجنوري پر ۱۹مه نېټه وروسته له هغه چي دکندهارهوايي ډګوپه عمومي دروازه کي چي دکندهار- بولدک دلويې لارې پرسرواقع ده دحربي قواوودبهرنيو مشاورينو دکروزين موټروپرکاروان په فدايې بريدکي

دري کورزين موټره ويجاړاوپکي سپروته يې مرګ ژوبله
واښتله ،نويرغلګرو عسکرودخپل معمول سره سم
دکندهار- بولدک پرلويه لارد سپرليوپرموټروډزي کړي
چي له امله يې «دري» تنه ولسي وګړي شهيدان شوي دي
.دجنوري پر۲۴مه نيټه رسنيو خبرورکړچي :دکاپيساولايت
داله ساي ولسوالۍ په هنګرانوکلي کي
نيواکګروبمبارکړی چي له امله يې «دري »تنه ماشومان
شهيدان شوي او«يو»ژوبل شو ی دی .دسيمه ييزوخلګو په
وينا په سيمه کي يې نه مجاهدين موجودوواونه هم
ديرغلګروپرګزمه کوم بريدشوی چي هغوی يې په غبرګون
کي بمبارکړی وای. دجنوري پر **۲۵**مه نيټه
يرغلګروځواکونودکورونيوعسکروپه ملتياد کونړولايت
دمرکز(اسعداباد )په اړونده سيمه (مکلي )کي دولسي
خلګوپرکورونوچاپه وهلې ،دتلاشۍ پرمهال يې ملکي
هيوا دوال وهلي اوکړولي او«دوه »تنه بزګران (دهقانان
)يې بې پلمې شهيدان کړي دي.

## فبروري :

دفبروري پر۸مه نيټه نيواکګروعسکرود کاپيسا
ولايت دنجراب ولسوالي په مرګاي سيمه کي دمحمد
يوسف نومي ولسي وګړي په کورې غل کړی اودنومړي
دکور«دوه »غړي يې شهيدان کړي دي .دفبروري پر ۱۳مه
نيټه داخلي عسکرودکندزولايت دمرکزمربوط دګورتيپې
دعربانوپه کلي کي دحاجي نورمحمد پرکورچي دکلي
مشردی يرغل کړی نومړي حاجي صاحب اويوزوی يې
ژوبل کړي اويوبل زوی يې ورشهيد کړ ی دی .دفبروري
پر ۱۳مه نيټه رسنيوخبرورکړچي له کابل څخه
کونړاوکاپيساته ليږل شوو پلاوو موندلې چي په همدې
ولايتونوکي دناټوله خوادوروستيوبريدونوټول قربانيان
ملکي وګړي دي ،کاپيساته دپلاوي مشرطاهرصافي
ويلي :چي په نجراب کي دفرانسوي عسکروپه بريدکي
«اته»تنه ماشومان شهيدان شو يدي .کونړته داستول شوي
هيئت مشرشهزاده شاهدبياوايې چي :دلته بيا «نهه »تنه
ولسي وګړي شهيدان شو ي دي .يادشوي پلاوي دوژل
شووکسانوعکسونه ښوولي چي زياتره يې د ۱۲کلونوڅخه
دکم عمرماشومان دي پلاوي داهم تائيدکړې چي
دبريدپرمهال په بمبارشووسيموکي حتی يو طالب هم
موجودنه ؤ.دفبروري پر **۱۵**مه نيټه يرغلګروځواکونو
دکندزولايت دخان ابادولسوالۍ په آقتاش سيمه کي
پريوکورچاپه وهلې دکورمشريې بندي کړی اودنومړي
«دوه »زامن يې شهيدان کړي دي .دفبروري پر ۱۲مه نيټه
يرغلګرو پوځونودکونړولايت دمروري ولسوالۍ په
دريدم کلي چاپه وهلي ،کورونه يې تلاشي کړي
،ډيرملکي خلګ يې وهلي اوپه اخرکي يې «دوه »تنه
ولسي وګړي شهيدان کړي دي .دفبروري پر ۲۲مه نيټه
امريکايانودننګرهار ولايت دخيوې په ولسوالي کې
پريوښوونځي بمبارکړی چي په ترڅ کي يې اته تنه
ماشومان اويوملازم ژوبل شوي دي .په بمبارکي
دښوونځي ودانۍ ډيره زيانمنه شوې ده .دفبروري پر ۲۲مه
نيټه امريکايانود هلمندولايت دکجکي ولسوالۍ دآزان
ناوې په سيمه کي داستوګني پرسيمه توغندۍ اوروليي
چي په ترڅ کي يې دهاوان يوه ګولۍ دحاجي محمدخان
پرکورلګيدلې ده ،په دغه پيښه کي دنومړي «يو»ماشوم
شهيدشوی اودکورنۍ «دري» غړي يې ديوې ښځي په
ګډون ژوبل شو يدي .دفبروي پر۲۱مه نيټه دپروان ولايت
دبګرام دهوايې اډې ومخته په زرهاوولسي وګړود
امريکايانوله لوري دقرآن کريم دسوځولوپرضدپراخ
لاريون پيل کړي چي په ترڅ کي يرغلګرواودهغوی
مزدورانوزيات شمېرمظاهره کونکوته مرګ ژوبله اړولې
ده. دفبروري پر ۲۲مه نيټه د پروان ولايت دشينوارو
ولسوالۍ کي هم کرايې پوليسو «اته» کسه لاريون کونکي
شهيدان کړي او«پنځه لس»تنه يې ټپيان کړي دي.
دفبروي پر ۲۲مه نيټه دجلال اباد په ښارکي
محصلينواوعاموخلګوپراخ لاريون ترسره کړ ،مظاهره
کونکودېرغلګروضدشعارونه ورکول اودقرآن شريف
دسوځونکومحاکمه يې غوښته ،خوپه همدې مهال دملي
!!پوليسوتربريدلاندي راغلل چي په پايله کي «يو»تن
شهيداو«شپږ»کسه ژوبل شو ي دي .دغه رازپه همدغه نيټه
دلوګرولايت دبرکي برک ولسوالۍ په برک راجان سيمه

کي هم دليسې زدکړيالانواوولسي خلګودېرغلګرودياد شوی ناروا عمل پرضد مظاهره وکړه ،دلته هم مظاهره کونکي دپوليسوترډزولاندي راغلل چي له امله يې «يو»تن دليسې زده کونکی شهيد او«اووه»تنه ټپيان شو يدي ،دغه رنګه «دوولس» تنه مظاهره کونکي دلاريون په جرم ! ! يرغلګروبنديان کړ ي هم دي.دفبروري پر ۲۳مه نيټه د پروان ولايت په بګرام ولسوالۍ کي يوواربياپوليسوپرلاريون کونکوبريدکړی چي له امله يې «ثلور»تنه مظاهره چيان شهيدان او«پنځه»زخميان شوي دي.دفبروري پر ۲۳مه نيټه د اروزګان ولايت ددهراودولسوالۍ په بازارکي په زرګونو مسلمانانو ديرغلګروله خوادقرانکريم دسوځولو پرضد پراخ لاريون ترسره کړ ،مظاهره چيانو غوښتل چي داشغالګرو سيمه ييزي قرارګاه ورشي اوترې وغواړي چي د اسلام مقدساتو ته دي نورپه بدسترګه نه ګوري اوهغه عسکرچي همدا عمل يې کړي مجازات کړي ،خوپه لاره کي ملي ! !پوليسوبريدپروکړچي له امله يې «پنځه» تنه مظاهره کونکي شهيدان او«پنځه لس» تنه ټپيان شوي دي ،ددې دولسوالۍ چارواکي هم دملکي خلګويادہ شوې مړګ ژوبله تائيدوي.دفبروي پر ۲۴مه نيټه دهرات ولايت دادرسکن ولسوالۍ په بازارکي په زرهاوو خلګودجمعې ترلمانځه وروسته ديرغلګرولہ خوادقرآن عظيم الشان دسپکاوي پرضدلويه مظاهره پيل کړه ،لاريون کونکودامريکااوکابل اداري پرضد شعارونه ورکول ،مظاهره کونکوپه ساعتونوساعتونو دکندهار -هرات لويه لاره دترافيکوپرمخ تړلې وه اوداشغالګرودياد شوي کرغيړني کړني دعاملينو محاکمه يې غوښته ،خوپه همد ې مهال پوليسوپرلايون کونکوډزي وکړي چي په ترڅ کي يې «پنځه لس» تنه لاريون کونکي شهيدان اوژوبل شو ي دي.دفبروري پر ۲۵مه نيټه د کندزولايت په مرکزکي ملي ! !پوليسو«درې؛» تنه لاريون کونکي شهيدان کړي دي.دغه رازپه همد ې نيټه داخلي عسکرود ميدان وردګ ولايت دکابل-کندهاردلويې لاري پرسرد سره پله په سيمه کي پرلاريون کونکوډزي کړي چي له امله يې «يو»تن مظاهره کونکي شهيد شوی او«يو»بل تن بياټپي شوی دی .دفبروری پر ۲۲مه نيټه د کندزولايت په خان ابادولسوالۍ کي خلګودقرآن کريم دسوځيدوپه غبرګون کي لاريون وکړ ،خلګوداشغالګرواودهغوی دمزدورانو پرضد شعارونه ورکول اوژرترژره يې له افغانستانه دخارجيانودوتلو غوښتنه کوله عسکروپه لاريون کونکوډزي وکړي چي له کبله يې «ثلور» تنه ولسي وګړي شهيدان اوټپيان شوي دي. دغه رنګه پرهمدې نيټه دسمنګان ولايت په مرکزايبک کي هم دداخلي عسکرولہ لوري «دوه» تنه مظاهره کونکي شهيدان شو ي دي.

## مارچ :

دمارچ پرلومړۍ نيټه امريکايې عسکرودنيمروزولايت ددلارام ولسوالۍ مرکزته نژدې په سيمه کي مشهورصراف (حاجي غني جان ) په خپل کورکي دنامعلومودلايلوله وجې شهيد کړی دی.دمارچ پر۵مه نيټه داروزګان ولايت دچوره ولسوالۍ دخواجه خديرپه سيمه کي ددې ولسوالۍ پوليسوديو ملکي سړي پرکورپرغل کړی ،دتلاشۍ په بهانه کورته ننوتلي نغدي پيسې اوقيمتي شيان يې غلا کړي دي. دکورخښتن دپوليسو سره مقاومت کړی چي په نتيجه کي يې دپوليسوله خوانوموړی دخپلي ښځې په شمول شهيد شوی اودوه ماشومان يې ژوبل شوي دي .دمارچ پر ۹مه نيټه رسينود کاپيساولايت دتګاب دولسوال (عبدالحکيم اخنزاده ) له قوله خبرورکړ چي ديادي شوي ولسوالۍ په ابراهيم خېل کلي کي ناټوبمبارکړی چي له امله يې «ثلور»تنه ولسي وګړي د«درو»ماشومانو په شمول شهيدان شوي او«دوه » کسه هم ټپيان شوي دي.دمارچ پر۹مه نيټه نيواکګرود ننګرهارولايت دچپرهارولسوالۍ په تريلي سيمه کي بمبارکړی چي له امله يې دوه تنه ولسي وګړي شهيدان شوي اويوبل تن ژوبل شوی دی.دمارچ پر۱۱مه نيټه رسينودولسي خلګواوعيني شاهدانوله قوله خبرورکړچي:دکندهارولايت دپنجوايي ولسوالۍ دزنګاوات دسيمي اړوند په دووکليوکي امريکايې

پوځیانو «اووه» لس تنه ولسي وګړي چې زیاتره یې ښځې او کوچنیان دي لومړی یې په ډیرې بې رحمۍ شهیدان کړي ،بیایې په یوه کوټه کي رایوځای کړی او په اخرکي یې سوځولي دي او «پنځه» تنه یې ټپیان کړي دي .یرغلګروځواکونو یادشوی جنایت دیولیوني عسکرکاروباله ،خوعیني شاهدانود کندهاردولایتي شوری اوکابل پارلمان غړوچي سیمي ته یې دپیښي دپلټنې په موخه سفرکړی ؤ ،پخپل راپورکي وویل چې :«کره لاسوندونه اوشواهد ښیي چې دغه جنایت دیوعسکرله خوانه ،بلکي دیوې شل کسیزې ډلي له لوري ترسره شوی دی ،په داسي حال کي چې پرسریې چورلکي ګرځیدې ،حتی دعملیاتو دمؤثریت ! اپه موخه یې روښندازونه هم غوځولي دي.اومهمه داچي په پیښه کي ډول ډول وسلې کارول شوي دي».دمارچ پر ۱۱مه نیټه امریکایي پوځیانود هلمندولایت دنهرسراج ولسوالۍ دقاضي محمداخندزاده په کلي کي دملکي خلګوپرکورونوچاپه وهلې ،«یو»ملکي هیوادوال یې شهید کړی او «یو»بل تن یې بیابندي کړی دی.دمارچ پر۱۷مه نیټه امریکایانود اروزګان ولایت مرکزترینکوټ ښارته نژدې دسرخوم په سیمه کي عملیات کړي دي ، «دوه »تنه ملکي هیوادوال یې شهیدان کړي او «یوولس» کسه یې بیابندیان کړي اوله ځان سره کوم نامعلوم ځای ته وړي دي.دمارچ پر ۲۲مه نیټه دمحلي پولیسوپه نوم( ایله جاریانو )دکندزولایت دمرکزپه اړونده سیمه کي دملکي خلګوپریوموټرډزي کړي چې له کبله یې «یوه »ښځه شهیده شوې او «یو»سړی ژوبل شوی دی.دمارچ پر ۲۵مه نیټه دهلمندولایت دکریشک ولسوالۍ دمیرمندوپه سیمه کي دمجاهدینواو امریکایي ځواکونوترمنځ دیوې اوږدې ښتني په جریان کي یرغلګروعسکروپه سیمه کي ولسي وګړي په زورمجبورکړي چې ددوی ترمخ پرهغولاروولاړشي چې کیدای شي ماینونه پکي ښخ شوي وي.دامریکایانوددغه ډول بزدلۍ اوجنایت په ترخ کي دیادې شوي سیمي دمیرمندوغونډۍ ته څېرمه څوتنه ولسي وګړي دیومځکني ماین دچاودیدوله امله شهیدان اوژوبل شوي دي.دهیوادله بیلابیلو سیموڅخه وخت ناوخت رسینودعیني شاهدانوله خولې ورته راپورونه ورکړي دي.دمارچ پر ۲۷مه نیټه دننګرهارولایت په پچیراګام ولسوالۍ کي داخلي عسکرووروسته له هغه چې یوټانګ یې دماین ښکارشو «درې»تنه ولسي وګړي شهیدان کړي او «دوه» تنه یې ژوبل کړي دي.دمارچ پر۲۷مه نیټه امریکایي عسکرود هلمندولایت دسنګین ولسوالۍ دساروان کلادشهزادې په سیمه کي «یو»اویاکلن سپین ږیری بې پلمې شهید کړی دی.

## اپریل :

داپریل پر ۵مه نیټه دکاپیساولایت دتګاب ولسوالۍ د ادیزوپه ملایانوکلي کي دیرغلګروځواکونوددرنووسلوپه ډزوکي چې یوه مرمری یې دلطف الرحمن نومي هیوادوال په کورولګیده اوله امله یې «درې»تنه ماشومان شهیدان شو ي دي.داپریل پر ۵مه نیټه دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ په نري مانده سیمه کي اشغالګرودیوملکي سړي پرکورچاپه وهلې ده ،یادشوی کوریې تلاشي کړی ،خوڅه جنګي اسباب یې نه دي پکښې پیداکړي مګرپه اخرکي یې ددغه کورمشرسپین ږیری شهید کړی اودنوموړي شهید «درې» زامن یې اسیران کړي دي .داپریل پر۷مه نیټه داخلي عسکرواوځایې اربکیانود کندهارولایت دمیوندولسوالۍ دکلاښامیرپه سیمه کي دیو کور« څلور»غړي :محمدرحیم(پلار) ،محمدنعیم ،سیدمحمداو حمدالله (زامن ) بې پلمې شهیدان کړي دي.داپریل پر ۷مه نیټه دغزني ولایت دخوګیانوولسوالۍ په کنداوسیمه کي دنیواکګروعسکروپه ډزوکي «درې»تنه سړي او «دوې »تنې ښځې ژوبل شو ي دي.داپریل ۸مه نیټه اشغالګرودمیدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ داونخي درې په موسی خېل سیمه کي پریومسجدچاپه وهلې ده اوپه جومات کي «دوه »تنه مسافرچي

دپکتیاولایت وواویادي شوي سیمي ته یې دخرخ لپاره دسون لرګي راوړي ووشهیدان کړي دي. دغه رازپه همدې نیټه دکاپیساولایت د تګاب ولسوالۍ په حمزه خېل کلي دیرغلګرودهاوان په ډزوکي چي یوه مرمۍ یې دظفرپه نامه دیوکلیوال پرکورولګیده اودنوموړي دکوریو ماشوم (نوید )شهیداویوبل تن یې ژوبل کړی دی.داپریل پر ۱۰مه نیټه دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ دباري ګل بازارپه سیمه کي د یرغلګرو ځواکونو ددرنوو سلود ډزوله امله چي یوه ګولۍ یې پر یوه کورراپریوتله «ځلور»تنه ماشومان او «دوې» سپین سري ښځ ي په شهادت رسیدلي دي . داپریل پر ۱۰مه نیټه دکندهار ولایت دمیوندولسوالۍ
دبند تیموردآغامیرکاریزپه سیمه کي امریکایي ځواکونودملکي خلکویو سرایچه موټردالوتکوپه توسط ویشتلی اوپکښي سپاره «دوه» تنه ولسي وګړي یې شهیدان کړي دي.داپریل پر ۱۱مه شپه یرغلګرودپکتیاولایت دجاني خیلو ولسوالۍ په بلزای اوحسن زای کلیوچاپه وهلې ،کورونه یې تلاشي کړي اوبیایې سیمه بمبارکړې چي له امله یې «پنځه»تنه ولسي وګړي شهیدان شو ي دي. داپریل پر ۱۲مه نیټه اشغالګروعسکرودکندهارولایت ددامان ولسوالۍ دمنډحصار په سیمه کي یوسپین ږیري هیوادوال چي کوچنۍ لورهم ورسره وه ،شهیدکړی دی
.دکندهاردامنیت امیررحمت الله اطرافي یاده شوې پیښه مني اوزیاتوي چي دایساف ځواکونه پرسړک دتېریدوپه حال کي ووپردغه سړي یې دډریدوږغ کړی ؤنوموړي پام نه وورته کړی چي بیادایساف قواووله خواله منځه یووړل شو. داپریل پر ۱۲مه نیټه دکندهارولایت دمیوندولسوالۍ دکلاښامیردسپین مسجدپه سیمه کي دامریکایې ځواکونوپه بمبارۍ کي «یو»ماشومام شهیدشو ی دی.داپریل پر ۱۳مه نیټه نیواکګرو دکندزولایت دمرکزپه په تلوکي سیمه کي پریوکورچاپه وهلې ده«یو»تن ملکي هیوادوال یې شهیدکړی او «دوه»تنه یې اسیران کړي دي. داپریل پر ۱۴مه نیټه یرغلګروځواکونودتخارولایت د رستاق ولسوالۍ په تابه تاش کلي کي دیوتن تجار(امیرعزیز) په کورچاپه وهلې ده ،نوموړي تجارته یې دزیات مالي تاوان اړولوسربیره دکورنۍ «دوه» غړي (نورالله اوعتیق الله)ورشهیدان کړي او «ځلور»تنه یې ځني بندیان کړي دي.داپریل پر ۱۴مه نیټه د نورستان ولایت په کامدیش ولسوالۍ کي دیرغلګرو اومجاهدینوترمنځ دنښتي په ترڅ کي دیرغلګروپه بمباریوکي چي په اګاسي اونوروسیمو کي یې دخلګوپرکورونووکړه «یویشت »تنه ولسي وګړي چي زیاتره یې ښځي اوماشومان دي شهیدان شوي دي.په یادشوي بمبارکي
یوشمېرنورکورونه ویجاړشوي هم دي.داپریل پر ۱۲مه نیټه امریکایانود هلمندولایت دکجکي ولسوالۍ
دزمینداوردکاریز ونوپه سیمه کي د اولسي خلکوپه کورونو بمبار کړی چي له امله یې «شپږ»تنه ښځ ي اوماشومان شهیدان شو ي دي.په دغه بمبارکي دملکي خلګو«درې» کورونه هم ویجاړشو ي دي. داپریل پر۲۷مه نیټه رسنیوخبرورکړچي:دمیدان وردګ ولایت دچک ولسوالۍ ددوران خېلوپه کلي کي دمجاهدینواو امریکایې ځواکونوترمنځ دنښتي په پایله کي دولسوالۍ له مرکزڅخه امریکایانو یادشوي کلي ته هاوانونه وتوغول چي په ترڅ کي یې یوهاوان پریوکورولګیدچي له امله یې « درې» ښځي شه یداني او«ځلور »تنې ژوبلې شوي دي ،ټپیاني شوي میرمني دچک روغتون ته انتقال شوي دي ،خوروغتیایې حالت یې داندېښنې وړښوول شوی دی.همدغه پیښه اوپکي دملکیانومړګ ژوبله دچک ولسوال اسماعیل وفا هم تائیدوي.داپریل پر ۲۷مه نیټه امریکایې عسکرود زابل ولایت دارغنداب ولسوالۍ دمرغاوۍ په کلي کې په سیم ه کي دیوه مسجدد ملاامام په شمول « ځلور»تنه ولسي خلک شهیدان کړي دي.سیم ه ییزاوسیدونکي وایي چي:یاده شوي پیښه هغه مهال رامنځته شوه چي

دیرغلګروپرټانګ ماین وچاودیداوپه غبرګون کې یې هغوی پرملکي خلګودزي وکړې. داپریل پر ۲۸مه نیټه نیواکګرودغزني ولایت دخوګیانوولسوالۍ په صفرخیل کلي یرغل کړی ولسي خلګوته یې ددرنو مالي زیانونو اړولوترڅنګ «یو»ملکي هیوادوال شهیدکړی او «شپږ»تنه یې دکلي دملاامام په شمول بندیان کړي دي.داپریل د۳۰مې نیټې په ماښام نیواکګروځواکونود لغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ په بولان سیمه کې دملکي خلګوپرکورونوچاپه وهلې ده ،کورونه یې تلاشي کړي دي اوترتلاشۍ وروسته یې«دوه»تنه هیوادوال چې دواړه سره ورونه وو شهیدان کړي دي اودشهیدانو پلار، ورور او«څلور» تنه نورکلیوال یې بندیان کړي دي.داپریل پر ۳۰مه نیټه یرغلګروځواکونود زابل ولایت دشاه جوي ولسوال ۍ دشوبارپه سیمه کې «څلور»تنه ماشومان شهیدان کړل .دیرغلګرودې کرغیړن عمل پرضدیوه ورځ وروسته (مئ )پرلومړۍ نیټه دشاجوی په بازارکې ولسي خلګوچې شمېر ۲۰۰۰تنوته رسیده پراخ لاریون ترسره کړاود احتجاج په توګه یې دکابل-کندهارلویه لارترساعتونو پورې دترافیکوپرمخ تړلې وه اودخپلوقاتلینومحاکمه یې غوښته !!.

**مئ :**

دمئ پرلومړۍ نیټه بهرنیوځواکونودلغمان ولایت د قرغیو ولسوالۍ دبولان په سیمه کې دملکي خلګوپر کورونو یرغل کړی دی. «دوه» تنه ملکي هیوادوال یې چې دواړه سره ورونه وو شهیدان کړي دي ددغوشهیدانو پلاراوورورېې بیادڅلوروتنوکلیوالوپه شمول اسیران کړي دي.یرغلګرود چپاوپه ترځ کې دخلګوکورونه تلاشي کړي اوخلګوته یې مالي تاوانونه هم اړولي دي.دقرغیوولسوال هم په دغه پېښه کې ملکي تلفات تائیدوي خوزیاتوي چې ددوی دخبرتیاپرته بهرنیوعسکروپه سیمه کې عملیات کړي دي .دغه راز دمئ پرلومړۍ نیټه ارزګان کې هم امریکایانود ولایت مرکزترینکوټ نږدې دبلوڅي په

سیمه کې دعملیاتوپه ترځ کې «یو»تن ملکي وګړی شهیدکړی او«دوه»تنه یې ژوبل کړي دي. وروسته یې بیاددغه کلي دمسجدامام دیوشمېرمقتدیانوپه شمول لاس تړي خپلې قرارګاه ته وړي دي. د مئ پر۲مه نیټه یرغلګرو دزابل ولایت دشاه جوي ولسوالۍ په مربوطاتوکې «څلور» تنه ماشومان شهیدان کړي دي.دمئ پر ۳مه نیټه د هلمند د موسی کلاولسوالۍ دمزرآبادپه سیمه کې ددې ولسوالۍ موظفو عسکرو « یو»سپین ږیری کلیوال (حاجي موسی) چې دمسجدڅخه دخپل کورپه لورروان ؤپه شهادت رسولی دی اوبیاله سیمې څخه تښتیدلي دي. دغه رازدمئ پر۳مه نیټه دکندزولایت دمرکزاړوندپه کنموسه دوکانه سیمه کې دمحلي دولتي ملېشودیوقوماندان(میرعالم) افرادو «درې» تنه ولسي وګړي (ملاامام ددوومقتدیانوپه ګډون )شهیدان کړي دي.دمئ پر ۴مه نیټه نیواکګروعسکرود لغمان ولایت دمهترلام اړوندباباصاحب ډاګ سیمه کې «څلور»تنه ملکي هیوادوال چې په لاره روان وو شهیدان کړي دي.دمئ پر۷مه نیټه اشغالګرو دکاپیسا د آله سای ولسوالۍ په مربوطاتوکې بمبارکړې چې په ترځ کې یې «څلور»تنه ولسي هیوادوال شهیدان شو ي دي.دمئ پر۷مه نیټه رسنیوخبرورکړچې:امریکایې عسکرود بادغیس ولایت دمرغاب ولسوالۍ دنوبرپه سیمه کې درنې بمبارۍ کړې دي چې له امله یې «څوارلس» تنه ملکي خلګ شهیدان شوي او «اتلس» تنه ژوبل شوي دي چې زیاتره یې ښځې اوماشومان دي.عیني شاهدانورسنیوته ویلي چې ددغې پېښې ټول قربانیان ملکیان دي.دمئ پر ۷مه نیټه رسنۍ خبرورکوي چې:بهرنیوځواکونود هلمند ولایت دسنګین ولسوالۍ په فتح محمدپیچ سیمه کې بمباري کړې ده چې له امله یې « ېوه »میرمن له خپلو «پنځو » ماشومانو (درو لو ڼو او دوو زامنو ) په ګډون شهیدان شوي دي.دمئ پر۱۲مه نیټه نیواکګرو دشپنیوعملیاتو په لړکې دلوګرولایت د څرخ ولسوالۍ په مخزن سیمه کې دچاپې پرمهال «یو»تن ملکي هیوداوال شهیدکړی او«یو»بل تن یې بیابندي کړی دی.همدارنګه دمئ پر ۱۲مه نیټه داخلي عسکرودبلخ ولایت د البرزولسوالۍ کې « څلور»تنه ولسي

وګړي هغه مهال شهيدان کړي دي چي ديوتن دجنازې په مراسموکي راټول شوي وو.تريادي شوي پيښي وروسته يرغلګرعسکرهم سيمي ته ورغلي او «اته»تنه ملکي هيوادوال يې اسيران کړي دي.دمئ پر ۱۳مه نيټه رسنيوخبرورکړچي بهرنيوځواکونو دکونړولايت د وټه پورولسوالۍ په دهوزکلي کي بمبارکړی دی ،دبمبارله امله «اته»تنه ولسي وګړي چي اکثره يې ښځي اوماشومان دي شهيدان شوي دي.عيني شاهدانوبي بي سي راډيوته ويلي چي وژل شوي ښځي اوماشومان نژدې غره ته دلرګيوراوړلوپه موخه روان ووچي دپيښي ښکارشوي دي ،دناټوويانده م دغه پيښه تائيدوي مګروژل شوي وسله وال افرادبولي.همدارازپرهمدغه نيټه د هلمند ولايت دموسی کلا ولسوالۍ دمسلماني په سيمه کي هم داشغالګرو عسکرودډزوله امله «درې»تنه ماشومان شهيدان شوي دي .دمئ پر ۱۴مه نيټه اشغالګرودشپنيو عملياتو په لړکي دهلمندولايت دبغني ولسوالۍ دکونجن په سيمه کي چاپه وهلې ده ، دعيني شاهدانوپه ويناپه دغه چاپه کي يرغلګرو «پنځه»تنه ملکي هيوادوال شهيدان کړي او«درې »کسه يې ټپيان کړي دي.دمئ پر۱۵مه نيټه بهرنيوځواکونو دبمبارله امله د هلمندولايت دګريشک ولسوالۍ دآدم خان په سيمه کي « درې»تنه ولسي وګړي (يوه ښځه اودوه کوچنيان )شهيدان شوي دي.دمئ پر۱۵مه نيټه اشغالګرود ننګرهارولايت د خوګيانوولسوالۍ دوزيروسيمه کي دکلي دملاامام(مولوي صاحب لعل محمد )پرکورچاپه وهلې ده ،دنوموړي مولوي صاحب دکورپه ګډون يې نورکورونه هم تلاشي کړي دي ،خوهيڅ جنګي اسباب يې نه دي پکښي موندلي ،مګرپه اخرکي يې مولوي صاحب شهيد کړی او«دوه» تنه ولسي وګړي يې بنديان کړي دي.دعيني شاهدانودويناپه اساس په پيښه کي يادشوي مولوي صاحب دطالبانوسره اړيکي نه درلودې.امامت يې کاوه اوماشومانوته يې ديني درس وايه.دمئ پر ۱۷مه نيټه بهرنيوپوځيانود کورنيوهغوپه ملتياد خوست ولايت دمرکزپه اړونده سيمه کي پريوکوردچاپې پرمهال «يو»ولسي وګړی شهيدکړی دی.دمئ پر ۱۸مه نيټه دامريکايي اکمالاتي کاروان ساتونکوداخلي عسکرود زابل ولايت په شاجوی کي دولسي خلګوسره ترلفظي شخړي وروسته «شپږ»تنه ملکي هيوادوال شهيدان اوټپيان کړي دي.دمئ پر ۱۸مه نيټه يرغلګرودارزګان ولايت دخاص ارزګان دشنې ناوې په سيمه کي دچاپې پرمهال« درې»تنه ملکي هيوادوال شهيدان کړي دي.دمئ پر ۱۹مه نيټه د ميدان وردګ ولايت په جغتو ولسوالۍ کي داشغالګرو دهاوان په ډزوکي «دوه»تنه ملکي هيوادوال شهيدان شو ي دي. همدغه رازپرياده شوې نيټه امريکايانود هرات ولايت دشينډنډولسوالۍ دزيرکوپه سيمه کې وروسته له هغه چي دطالبانوسره يې نښته وکړه «يو»ملکي سړی شهيدکړی دی.دمئ پر ۱۹مه نيټه يرغلګرودشپنيوعملياتوپه لړکي د غزني ولايت د قرباغ ولسوالۍ په خان زمان خيل سيمه کي دملکي خلګوپرکورونو چاپه وهلې ده ،دتلاشۍ پرمهال يې خلګوته زيات مالي تاوانونه اړولي دي اوپه اخرکي يې «دوه »تنه ملکي هيوادوال شهيدان کړي او«يو»تن يې بندي کړی دی.دمئ پر۲۷مه نيټه اسوشيټيډپريس اژانس خبرورکړچي تېره شپه نيواکګرو ځواکونودپکتياولايت دګردي ځېړۍ ولسوالۍ په صوري خېل سيمه کي ديوملکي هيوادوال (شفيع الله ) پرکوربمبارکړی.په دغه بمبارکي دکورديادا شوي مشرپه ګډون دنوموړي دکور«اته» تنه غړي چي ټول ښځي اوماشومان دي شهيدان شو ي دي اويوازې «يو»ماشوم يې ژوندی پاته شوی دی.يرغلګرځوانه هم ياده شو ې پيښه مني ،خوواېي چي خپل مخالفان يې په نښته کړ ي دي.دمئ پر ۲۷مه نيټه اشغالګرو داروزګان ولايت دترينکوټ ولسوالۍ دتنګرپه سيمه کې دملکي خلګوپر کورونولومړی چاپه وهلې ده اوبيايې« دوه »تنه ولسي وګړي شهيدان کړي او«يو»تن يې هم بندي کړی دی.دغه راز«درې» شخصي موټران يې سوځولي دي.نوربيا

مأخذونه :[بي بي سي راډيو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،روهي ويبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسيا=اوبينوا=]

# که یو عسکر هم پاته و....

بشیر

په وروستیو کې د تورپوستې امریکائي ولسمشر (اوباما) په حکم واشنګټن ته د کابل لاسپوڅي رژیم دمشر کرزي له سفر سره هم مهال دافغانستان اسلامي امارت مشر تابه په یوه اعلامیه کې ګوت څنډنه وکړه ، که د کرزي اداري له امریکا سره دیوه امریکائي عسکر د پاته کېدو پر سر هم کومه معامله او هو کړه وکړه ، نوپر ضدبه یې جهاد دوام ولري ... دغسې شرمیدلې هو کړه یاتړون به افغان ولس ته،دحقوقي او قانوني پلوه کوم اعتبار نلري ، یوائې د کرزي او دامریکایانو ترمنځ شخصي معامله به وي چې افغانان به هغه هیڅکله قبوله نکړي ،دتیر په څیر به یې په مقابل کې سپېڅلی جها روان وي ، په اعلامیه کې راغلې : که دهر څومره لنډې یا اوږدې مودې لپاره دامریکا یې بنکېلاک لخواد عسکرو دپاته کولو بد ه اراده وي، اسلامي امارت به د جهادي دریځ اومسیر پر شانشي ،هم به په راتلونکې کې د ټولود بوږنوونکوپیبنو اوبدوعواقبو مسؤلیت د کرزي دامریکایې رژیم په غاړه وي.

داسلامي امارت لخوا ددغه ګواښني خبر درسنیوله لارې هغه مهال خپور شو، چې رسنیو ددې هو کړې په اړه بېلابېل نظرونه اوتحلیلونه خپرول ،یوشمېر پردې پالو افغانانو تمه درلوده چې کرزی به خامخا بیر ته له ځان سره د ۲۰۱۴ز وروسته افغانستان کې دزر ګونو امریکایي پوځیانو دپاته کیدو په باب دخپل آقاد فرمان راوړ وسربیره به داځل دهغه (اوباما) په نویو مهربانیو اولورینو ډکې مونګلې راستون شي .

د کتونکو په وینا : د کابل دامریکایي رژیم دغه پردې پال چارواکې د کرزي سفر دبریاوو اولاسته راوړونو هغه مهال ناهیلې شول چې کله داسلامي امارت لخوا دتیزې او له قهر ه ډکې ګوت څنډنې له ډاره افغانستان کې دمیشت امریکایي پوځیانو پرروحیاتو لړزان اوټکان رانشې دشسپیني مانۍ ویاند اړشو چې ووایي : داوباما حکومت له افغانستانه دټولو پوځیانو به ویستو هم غور وکړي !! له دې څخه وېراندې به امریکایانو په بنه شد اومد ویلې چې

د ۲۰۱۴ز وروسته به خامخا ددوئ یوشمېر عسکر په افغانستان کې پاته وي ! هیڅکله به دوئ له افغانستانه ټول پوځیان ونه باسي ! څنګه چې تېر کال اوباما دغله پشان په یوه نااعلان شوي سفر افغانستان ته ددې لپاره راغلی و، څو خپلو عسکرو ته د جنګي روحیې ښښلو تر څنګ دا رګ دنه ددایمي هډو جوړولو په باب خپل یو کرغیړن فرمان لاسلیک کړي، څو نړۍ ته څرګنده اوښیې چې امریکا افغانستان کې دپاتې کېدو کلک هوډلري او ترې دژر وتو اراده نلري.

خو اوباما هغه مهال ناهیلی شوی و ، چې کله په بګرام کې د خپلو پوځیانو پریوتې مورالونه او لړزیدلې روحیات له نیږدې ولېدل اودځینو جنرالانو جنګ ضد نیو کې یې واوریدې ، هغه وچې بیر ته چوپه خوله لاړ او دخبري وینا پر مهال یې دا اعتراف کړی و: چې افغانستان کې ددوئ عسکر ستومانه شوي دي او هغوئ دلته نور نه غواړي چې له ټاکلې نیټې وروسته یوه ورځ هم نور تم شي ...له دې څخه علاوه په افغانستان کې د ستومانه امریکائي پوځیانو د کو کارو په اړه نور ګڼ شواهد هم لېدل شوي دي

اوس تازه دجنوري په یوولسمه واشنګټن کې اوباما د کرزي سره یو ځای خبرې کانفرانس ته وینا کوله په لومړي ځل هغه دخپل ولس په وړاندې اعتراف وکړ چې غواړي له طالبانو سره مذاکرات وکړي !اود دې لپاره قطر کې طالبانوخپل دفتر هم پرانیستی .

قطر کې چې د اسلامي امارت دفتر په ابتدائي حالت کې قرار لري ، دکتونکو له نظره د څه مودې راهیسې امریکایان علاقه ښیې چې داسلامي امارت سره دمخامخ خبرولپاره په نه زړه ځنې واقعیتونه اومنې.

او اسلامي امارت هم منلې چې دامریکا متحده ایالاتو اونورو سره تنها دافهام او تفهیم په غرض یې دقطر هیواد په پلازمېنه دوحه کې دفتر جوړولوسره توافق ښودلی ، خو په دې لړ کې نور پر مختګ هغه مهال په ټپه ودرید چې کله د کندهار پرنجوايي ولسوالی په زنګ او ات سیمه کې امریکایې یر غلګرو په ډېر زیات وحشت ګڼ ولسي وګړي ووژل

بل امریکایان له خپلو یوشمېر ژمنو په شاشول ،اسلامي امارت احتجاجا له امریکا سره مذاکرت دڅه ځنډ لپاره متوقف اعلان کړل ...

دجنوري په یوولسمه اوباما داهم وویل: چې دوئ غواړي په روان کال کې په تیزۍ ټولې امنیتي چارې د کرزي لاسپوڅي رژیم پوځي ارګانونو ته وسپارې اوهم د عملیاتو مشر توب دګوډاګي رژیم اردو ته وسپاري

خو د ۲۰۱۴ز وروسته ددوئ یوشمېر پوځیان افغانستان کې په دې شرط پاتې کړي چې هغوئ به له ټولو افغاني قوانینو اوارزښتونو مستثنی اومصؤنیت ولري ، له دې پر ته دوئ تیارندي چې خپل پوځیان افغانستان کې پاتې کړي! په دې هر سړی پوهیږي چې امریکایې عسکرو ته قانوني مصؤنیت اواستثناور کولو معنی داده چې دافغانانو دوژلو ،شکنجه کولو او ور ته دسپکاوي اړولو له امله به امریکایي پوځیان نه پوښتل کېږي... نه به محاکمه کېږي ... ولې امریکایان غواړي په نړۍ اوپه خاصه توګه افغانانوباندې د خپل شیطاني نسل په اړه د بر تری او تفوق امریکا ئې جعلي ایډیا اومني ،امریکایان دنوري نړۍ ازاد خلک له خپلو وګړو سره مساوي نه بولې اود غلامانو په کچه بر خورد ورسره کوي او نه ور ته دازادو اوناپییلیو هیوادو قوانین ،اخلاقیات اودودونه اعتبار لري ، دډېرو کارپوهانو په اند: که دامریکا دغه بد نیت او اراده ومنل شوه ، دناپییلي افغانستان راتلونکی به تریوښتنې لاندې راولې !! له دې وجې اړ تیا ده چې داسلامي امارت دا دریځ که یوامریکائي یوعسکر هم پاتې و... په وړاندې به یې جهاد اومقاومت روان وي به ستایلو اوشابسي ویلو بدرګه شي....




## غزل

طلامحمد محمدي

د چړو په څوکو یون کوي پور اخلي
میړني په غاړه کله پیغور اخلي

دمظلوم آهونه ځي چې دعرش لور ته
ټول جهان به خامخا ځینې اور اخلي

څو ښکاره دازادۍ مسیحا نه شي
دغازي زخمونه کله ټکور اخلي

دا خیرات نه ده نه کار ده دزاریو
یاران تللي آزادي به په زور اخلی

راوتلي شملور غیور قومونه
انتقام به له غلیمه دورور اخلي

محمدي دبم خوږ لی مرګی خوند کړي
جنازه به دې په جار او جور اخلي

## دعرش لاره

عزت الله " مخلص "

سپیڅلی روح دې دشهید زړه له پرهاره وځي
دمستو حورو بدرګې دی عرش ته لاره وځي

په سپین جبین یې دمعصومو وینو خال ایښی دی
ځکه سپوږمۍ ، ستوري دحسن له مداره وځي

بیا کوم بلال دتورو شپو په غیږه کې چیغه وکړه
د تکبیر غږ سره اوږده شپه تر سهاره وځي

بیا ځمکه ریږدي د نمرود دسرو لمبو له زوره
څوک بت شکن ابراهیمي دی له انګاره وځي

په کوم منصور پسې یې وکړه اقتدا دمینې
د دار په سر یې پاکه مینه له خماره وځي

دا چې له هسکه ابابیلو پرې ډبرې وار کړې
څوک ابرهه دی بیا له زور او له ګوزاره وځي

ته وا چې دا خو به مخلص عزت الله شهیدوي
چې راڼه ستوري یې دمینې له مزاره وځي

## لېونی جانان

عرفاني

رقیب لېونی شوی هم جانان لېونی شوی
هرڅوک په کاڼو ولي ټول جهان لېونی شوی

حیران یم چې داولې یو تربل سره وژني
چې هرې خواته ګورم هر انسان لېونی شوی

له پاسه دباران په ځای اورونه را اوریږي
هم ځمکه لېونۍ شوه هم آسمان لېونی شوی

منزل ته یې روانې سترې ستړې قافلې وې
کاروان یې لوټ تالان کړ لو څاروان لېونی شوی

بلبل اوبورا ګان خو یې ټول وشړل ګلشن نه
سپرلی لېونی شوی هم خزان لېونی شوی

بادونه دي سیلۍ دي تورې لړې راخورې دي
هرڅه یې په مخه کړي دي توپان لېونی شوی

هرڅه یې چې لیکلي عرفاني نه ګیله مه کړئ
قلم او کتابچه هم یې داستان لېونی شوی

## دشهید غږ

عزیزالرحمن حبیبي

هیڅ خپه نه یم په دین شومه اعدام
خو تېر نه شومه ترمرګ له خپل مرام

زما په مرګ خوږو یارانو خپه نه شئ
ماته راکړو رب عزت او لوړ مقام

ماخو مال او سر دخدای لپاره ځار کړل
شکر شکر چې مې دین نه کړو بدنام

زما وینه به رنګ راوړي ډېر په زغرده
شي حاکم به درب دین ښکلی اسلام

دښمنان ددین وطن ښه درمعلوم دي
پرې یې نه ږدئ رڼا ورځ کړئ پرې ماښام

له عبرت نه ډک درسونه ورته ورکړئ
چې یې حال له بد بدتر شي له ویتنام

دجهاد ګرم سنګر درنه سوړ نه شي
دښمن سترې دې نور تبنتي شو ناکام

شهادت مې دخدای لار کې لوی ارمان وو
شو نصیب مې ابدي ژوند په ارام

سپینې حورې به مې ښکل کړي قدمونه
دکوثر دحوض اوبه به څښم په جام

اخري پیغام زما غازیانو دادی
یو په زر له غلیم واخلئ انتقام

(حبیبي )کفار به یو ژوندی لاړ نه شي
که ملت وکړي یو ځل ملي قیام

## ځـغـلــو

عرفان الله

لکه یوسف په زولنو ک    ې ځغلو
ګل سره دومره ډېره مینه لرو

مونږ دخلیل په څ ېړ لمبو کې ځغلو
په ییلو پښو پسی اغزو کی ځغلو

مونږ د وطن دازادی په تکل
دیو سپیڅلی سپین سحر په خاطر

سبابی ګاه په تورو غرو دک    ې ځغلو
په ترګمیو تورو شپو کی ځغلو

دتورو غشو او نیزو په جنګ ک    ې
مجاهدین یو انقلاب راولو

په خال ې لاس په میدانو ک ې ځغلو
تل دجهاد په سنګرو کی ځغلو

دشهادت مرګی مو دومره خوښ دی
عرفانی مونږه غرنی خلک یو

چی دبارودو واسکټو ک    ې ځغلو
ځکه په دښتو او میرو کی ځغلو

## دازادۍ زیرې

عاکف مهاجر

دعصر سلیمان ته ابابیل زیری راوړی
په سرو ټکو رنګین دازادۍ توری لیکلی

په ښهښته ده خزان له کلي تښتي په وتو ده
په دښتو څړو پړو سپین لباس ده غوړې دلی

له تاج داستشهاده یې یو ګل ورته ډالۍ کړ
لیلا دازادۍ ته یې په سر کې ده ټومبل ی

وحشي تورې کیږد ی له تورو غرونو پناه کیږي
سپ ېډې په چاودې دو دي دسحر کاروان راغلی

په توره کلیسا کې به نور سپین طالب اذان کړي
دسپین جومات مشعل په کلیساکې ځلې دلی

رسۍ داریانا باندې صلیب ترلی بند ده
په هره خوا رپیږي سپین هلال ده رپې دلی

عاکفه !داسلام دهیبتي توري ګ وزار ته !
ددرستې نړۍ کفر په میدان مرام بایللی

# دتخار جهادي بهير ته لنډه کتنه

عبدالرؤف "حکمت"

پېژندنه

تخار ولایت دافغانستان په شمال ختیځ کې پروت دی چې ختیځ ته يې بدخشان، شمال ته يې دتاجکستان هیواد، لویدیځ ته يې کندز او بغلان ولایتونه او جنوب ته يې دبدخشان او پنجشیر ولایتونو مربوطات پراته دي.

دغه ولایت چې په شمالي افغانستان کې یوله نفوسو ډک ولایت بلل کیږي دادارې تشکیلاتو له اړخه په مرکز (تالقان)سربیره په ۱۶ ولسوالیوویشل شوی دی چې دافغانستان دجغرافیوي جوړښت نږدې ۱۲،۳۳۳ کیلومتر مربع ساحه تشکیلوي دتخار ولسوالۍ ینګي، اشکمش، چال، ورسج، فرخار، کلفګان، رستاق، هزارسموچ، چاه آب، ینګي قلعه، درقد، خواجه غار، خواجه بهاء الدين، بهارک او دشت قلعه دي دتخار خلک اکثره له اقتصادي پلوه بې وزلي او دوریجو، پختو او میوو دانو له حاصلاتو په لاسته راغلیو پیسو باندې ګوزاره کوي دشمال دنورو ولایاتو غوندې داولایت هم دژبو او نژادونو ګډوله ده چې تاجک ،ازبک، پښتانه او هزاره په کې یودبل ترڅنګ ګډوروروليز ژوند کوي.

تخار چې دآمو او کوکچې سیندونه يې له ځینو برخو تیریږي، یو زراعتي او زرخیز ولایت دی، دغه راز داولایت دمالګې دکانونو د درلودلو له امله دافغانستان او سیمې په سطحه ډیر شهرت لري، ددې ولایت د تاقچه خانو، چال او کلفګان دمالګې کانونه دافغانستان له ستر و طبعي زیرموڅخه ګڼل کیږي.

یرغل او جهاد

داسلامي امارت دحاکمیت په مهال طالبانو دتخار ولایت په بشپړ ډول نه وو فتحه کړی،بلکې دمرکز په نیولو سربیره يې شمال خواته تر دشت قلعه پورې پرمختګ کړی وو او ختیځ ته دفرخار تر تنګي رسیدلي وو، هغه مهال چې امریکایي یرغلګرو په افغانستان برید کاوو طالبانو دمسعود دډلوالې په وړاندې دتخار په خواجه غار او فرخار کې مهم دفاعي خطونه درلودل، دغه راز دتالقانوشمال ته له خواجه غار څخه بیا په جنوب کې تر اشکمش پورې دخواجه غار، کلفګان، فرخار تنګي، نمک آو، چال او اشکمش په ساحاتو کې دفاعي پوستي موجودې وې.

دامریکایي یرغل له پیل وروسته امریکایانو دډلوالې دجګړه مارانو په غوښتنه او معلومات ورکولو دخواجه غار او فرخار په دفاعي خطونو هم سخته بمباري پیل کړه، دابمباري چې له ډیرې لوړې ارتفاع څخه کیدله، او په وړاندې يې مجاهدینو کوم مؤثر دافع هوا سیستم نه درلود، نوځکه له څو اونۍ مقاومت وروسته مجاهدین اړ شول، چې

جبهه یې مقاومت ته دپای ټکی کیږدي ، او دمزار له سقوط وروسته دوی هم د کندز په خواعقب نشیني وکړي .

په دې توګه تخار ولایت دپخوانیو جګړه مارانو په توسط دبهرنیو اشغالګرانو لخوا اشغال شو ، او جرمني ځواکونو یې په مرکز تالقان کې ستره قرارګاه جوړه کړه .

په تخار ولایت کې هم دنورو شمالي ولایاتو غوندې دیرغلګرو خلاف کرار کرار جهادي عملیات پیل شول ، ۲۰۰۹ کال په تخار ولایت کې دیرغلګرو خلاف دجهادي انکشاف او توسعې په لحاظ مهم کال بلل کیږي ، په دې کال دتخار په لراوبر کې په دښمن ۴۰ مختلف مؤثر بریدونه ترسره شول ، ددې کال په بهیر کې نه یوازې جهاد د تخار ټولو سیمو ته خپور شو ، بلکې جهاد علني او اولسي شکل غوره کړ ، تردې چې په راتلونکي ۲۰۱۰ کال کې دعملیاتو ګراف څوبرابره لوړ اوشمیر یې ۱۳۱ عملیاتو ته ورسید ، په دې کال په ۹/۶/۲۰۱۰ میلادي نیټه باندې ددرقد په ولسوالۍ کې مجاهدینو دیولړ عملیاتو په ترڅو کې ددښمن ځواکونو ته سخت تلفات واړول ، په دې جګړه کې درقد ته راغلي داجیري اردو ځواکونه دمجاهدینو لخوا محاصره شول چې ترڅلورو ورځویې محاصره روانه وه ، ترڅو دهوایي عملیاتو له لارې له سیمې ووتل په دې جګړه کې مجاهدینو ته ډیر مهمات هم لاس ورغلل .

دتخار ولایت پخواني جهادي مسؤل مولوي محمد محسن د ۲۰۱۱ کال دمارچ په میاشت کې له الاماره ویب پاڼې سره په مرکه کې دتخار ولایت جهادي حالت داسې انځوروي .

( په تخار کې جهادي وضعیت لله الحمد دپخوا هرکله په پرتله اوس په ښه وضعیت کې قرار لري ، زموږ تشکیلات دتخار ولایت ټولو ۱۶ ولسوالیو ته پراخ شوي دي او مجاهدین په ټولو سیمو کې شتون لري ، اما په ځینو سیمو کې یې وجود علني دی او په سیمو سلطه لري او په ځینو کې مخفي فعالیت لري .

خواجه بهاء الدین ، فرخار ، درقد ، ینګي قلعه هغه سیمې دي چې مجاهدین یې په پراخو سیمو واک لري ، په دې سربیره په نورو کې هم ځواکمن شتون لري ، سږ کال دښمن غوښتل په تخار ولایت کې دمجاهدینو دسوق او اداري مراکز تهدید کړي ، له همدې امله دوی په خواجه بهاء الدین ، ینګي قلعه او درقد کې پوځي عملیات ترسره کړل ، مګر دښمن له غوڅ شکست سره مخ شو ، په خواجه بهاء الدین کې دعملیاتو په مهال ددښمن ګن شمیر عسکر دعلي قتاق په سیمه کې دمجاهدینو لخوا محاصره شول چې تریوې هفتې په سیمه کې محاصره وو ، وروسته دښمن یوازې دهوا له لارې خپل سرتیري له سیمې وایستل او هیڅ یې ترلاسه نه کړل ، له دې وروسته دښمن په ینګي قلعه او درقد ولسوالیو کې عملیات پیل کړل ، چې هلته هم دوی له غوڅ شکست او سختو تلفاتو سره مخامخ شول ، په درقد کې ددښمن دعملیاتو په خلاف مجاهدین ۴۰ ورځې په مقاومت مشغول وو چې په دې لړ کې دانفجاراتو ، کمینونو او تعرضي عملیاتو په ترځ کې دښمن سخت وځپل شو ، تردې ناکامیو وروسته په خواجه غار ولسوالۍ کې هم ددښمن عملیات ناکام شول او دمجاهدینو لخوا دښمن ته زیانونه واوښتل ، ددې جګړو په مهال مجاهدینو هم تلفات درلود خو ددښمن زیان څوبرابره زیات وو .

مولوي محمد محسن د ۲۰۱۱ کال دعملیاتو په اړه وایي ، موږ تراوسه ۷۵ مختلف عملیات ترسره کړي دي ، چې په نتیجه کې یې ۸ خارجي عسکر مړه او ۳ ټپیان شوي دي ، دغه راز دداخلي اجیرانو ۱۰۸ عسکر مړه او ۷۹ نور ټپیان شوي دي ( ۲ ) په تخار کې دخارجیانو تلفات ځکه لږ دي چې هلته خارجیان په عملیاتو کې ډیر ګډون نه کوي او زیاتره عملیات داخلي اجیر عسکر ترسره کوي .

د تخار په ولایت دتیرو څو کلونو په ترڅ کې هغه
ټولې سیمې ترجهادي پوښښ لاندې راغلې، چې پخوا
دسیمه ایزو جګړه مارانو او پردیو داجیرو قومندانانو مهمې
ځالې وې، خواجه بهاء الدین، فرخار، رستاق، دشت قلعه
او نورې سیمې چې داسلامي امارت دواکمنۍ په مهال هم له
جګړه مارانو نه وې تخلیه شوې مګر اوس په کې اساسي
تحول راغلی، دعام اولس په مرسته مجاهدین توانیدلي چې
په دې سیمو کې فاسدو عناصرو او شوکمارۍ ته دپای ټکی
کیږدي، په دې سیمو کې په تیرو څو کلونو کې نه یوازې
اشغالګر او پلویان یې ځپل شوي بلکې
دمجاهدینو او سیمه ایزو علماء کرامو
دفعالیتونو په برکت ډیر ټولنیز اصلاحات
هم راغلي، په دې ټولو سیمو کې اوس
دعلماء کرامو په مشرۍ دامربالمعروف او
نهی عن المنکر فعالیتونه روان دي، چې له
امله یې دناجائزو دودونو، بدعاتو،
خرافاتو، دساز او سرود دمیلو او نورو
غیراخلاقي کړنو مخه نیول شوې ده، په
تخار کې په تیرو کلونو کې نه یوازې بهرنیانو ته درانه
تلفات اوښتي بلکې په بیلابیلو پیښو کې دجنرال داود داود
، شاجهان نوري، مطلب بیګ او انجینر عمر غوندې
دشراوفساد لوی لوی قومندانان هم له منځه تللي او په دې
توګه دولایت په سطحه دقومندان سالارۍ طلسم مات شوی
چې په حالاتو یې خورا مثبت اغیز پرې ایښی.

## جنګي جنایات

تخار په تیرو څو لسیزو کې دجنګي جنایاتو خورا
ترخه وختونه ترشا پرې ایښي، په دې ولایت کې دپخوانیو
قومندانانو ترمنځ په سیالیو کې اولس ته خورا سخت تلفات
اوښتي او حتی په ځینو سیمو کې دې چارې داولس ترمنځ
داعتماد او وروولۍ فضا ته زیان اړولی، که پخوا به یوازې
جګړه مارانو د تخار داولس په خلاف جنګي جنایات ترسره
کول، له امریکایي یرغل وروسته بهرني اشغالګر او محلي
چارواکي هم داولس په وړاندې په جنایاتو کې ښکېل پاتې
شوي دي.

د ۲۰۱۱ کال دمې دمیاشتې په ۱۸ نیټه الماني ځواکونو
دتالقان ښار په پیڅه کې دګاوملي په کلي کې په یوه کور
چاپه ووهله او څلور تنه اعضاء یې په شهادت ورسول، تردې
پیښې وروسته دتالقانو اوسیدونکو په مظاهره لاس پورې کړ
او دالماني ځواکونو دقرارګاه ترمخ یې داعتراض غږ پورته
کړ، خو الماني ځواکونو په پوره بې رحمۍ په مظاهره کوونکو



ډزې وکړې، دځلورو ماشومانو په شمول یې ۱۲ تنه مظاهره
کوونکي په ډزو شهیدان او ۸۰ تنه نور یې ټپیان کړل.

## اوسنی حال

دتخار په ولایت کې همدا اوس جهادي تشکیلات ۱۶
ولسوالیو او نږدې ټولو سیمو ته غځیدلي دي، مجاهدین نه
یوازې نظامي تشکیلات لري، بلکې د قضاء، تعلیم او تربیې
او دعوت ارشاد فعالیتونه هم لري، سږکال د کوچني اختر په
شپو ورځو کې ځینو رسنیو وویل چې دتخار ولایت په ګڼو
مسجدونو او داختر دلمانځه په مواقعو کې دملاامامانو او
ځایي مجاهدینو لخوا دملامحمد عمر مجاهد اختریز پیغام
خلکو ته واورول شو، چې دا په تخار کې دمجاهدینو
دبرلاسۍ نغد ثبوت بلل کیږي

# جنګي لګښتونو امریکا ځملوله!!

" اتل "

رښتیاچې په جنګ کې ګوږې نه ویشل کیږي! جنګ کې ښکیلې خواوي خامخا دجنګ تر اخه ځکې، پکې د هرلورې جنګیالي مره، ټپیان اواسیران کیږي او هم دواړوغاړو ته له اقتصادي اومالي پلوه درانه زیانونه اړوي.

پخوانی لوی سکندر چې دنړۍ پر نیولو مین و، د ډېرو لرې لرې هیوادونو په لاندې کولو او د نیولو له امله یو افسانوي تاریخ لري. دګڼو لویو بریاوو سوبواو هیوادونو دبې شمېره مالونو اوشتمنیو په لاس ته ور تلوسربیره کله چې دسکندر په "رومة الکبری" (یونان) داقتصادي زوال سېلۍ را والوته هغه یې داسې پړ مخې نسکوره کړه چې بیا ترننه پورې بیر ته خپل ځای ته ورنغله.

سکندر ددې لپاره چې پ ه نړۍ د " رومة الکبری" امپراطوری رعب کېښوي او دنړۍ انسانان دیوناً یانو غلامان کړي، ډېر لوی ،لوی جنګونه وکړل، په هر جنګ یې بې حسابه لګښتونه وکړل، اخر همهغو درنو لګښتونو دهغه نړیوال سلطنت دزمکې له مخ پناه کړ.

په وروستیو پیړیو کې هسپانویانو ته دامریکا په کشفولو دسروزو پریمانه کانونه په لاس ورغلل، چې استخراج ولویې هسپانویان د نړۍ باداران کړل، په دې سره د هغوئ په مغزو کې دخپل واک اوسلطنت غځولو نشه راغله، په جنګونو یې بې حسابه دولتونه وښندل ، اخر یې هغوئ هم ځملول او دنړۍ یوخوار وزار ولس پاتې شو . دهسپانیې میراث بریتانیې ته پاتې شو، چې دنړۍ نیولو هوس له امله ددرنو جنګونو مصارفو دیوالیه کړه ، فرانسه هم هغه مهال له ورته انجام سره مخ شوه ، چې کله یې دخپل هیواد پولو غځولو په اراده جنګونه پیل کړل اوخپل بې شمېره توکي او وسایل یې په جنګونو کې ایره کړل، ډېر ژر هغه هم دهسپانیې او بریتانیې پشان د زوال سیلې ځملوله ، بیا هم دې بد وعزایمو بریتانیا اوفرانسه پخپلو کې سره وجنګول، چې دجنګي لګښتونو لپاره دپیسو موندلو په بدل کې دبریتانیې تاج صهیوني سوداګرو اوشتمنو ګروکړ، وروسته په اروپا کې چې څومره بدلونونه رامنځته شول د هغو ټولو ترشا دصهیونستانو غوښتنې اوشرائط پټ وه .

په اوس وخت کې نوی مثال امریکا ده ، امریکا چې زمونږ پر هیواد یرغل را وړ ،هغه مهال نه تنها له پوځې پلوه سترځواک وه ،بلکې له قتصادي پلوه هم یو نه شکست منونکی هیواد و، دادی دولس کاله وروسته امریکا دپوځې دبدبې اورعب هوا وتې او دجنګ ونو اوږدیدو له امله دې حالت ته رسیدلې چې اقتصاد یې پرله پسې تیندکونه خوري اوډېر لوی نه لوی بانکونه ترل شوي ، مالي اواقتصادي مؤسسات یې د نه جبرانیدونکو خساروښکار شوي ، دبریتانیې پشان دامریکا

ټوله ملي پانګه هم يهودي پانګوالو ګروکړي    او په لومړي وار هغه عامه اسانتاوي اوخدمتونه چې دامريکا دولت به خپلو وګړوته رسول لغوه   کړل  اوس غواړي چې دمنځني کچې په شتمنو او پانګوالو ماليه نوره هم سيوا کړي.

هم په راتلونکي کې دخپل بوديجوي کسر   دپوره کولو لپاره اراده لري چې له خلکو جنګي ماليه هم      ټوله کړي...
دامريکا هغوڅو لکه وګړو چې له بانګونو په پورونو کورونه اخستي  وه ،دبانګونوله  شړيدو  ووروسته هغوئ له کورونو وويستل شول او س دشنه اسمان لاندې په سرکونو ژوند کوي  او داحالت نه يوائې  په امريکا راغلی بلکې  په ټولو هغو هيوادو راغلی چې له امريکا سره په روان ناروا جنګ کې ونډه لري ، ټول اروپائي هيوادونه له سوړ بازار سر ټکوي  په هسپانيه ، بريتانيه ، اټاليا او پرتګال اغېز ډېر کړی دی .

په يادو هيوادو کې داقتصاد  ي ځوړ تيا امل يو   دا هم دی چې دهغوئ ټوله راکړه ورکړه  په امريکايي  راکړه ورکړه ولاړه وه ،څه مهال چې امريکا يې ستم له خساري سره مخ شو،نو شريکانو ته يې هم تپ ور ورسيد .

ديوي اندازي له مخې:امريکا   د تېرو  يوولسو کلو په دوران کې په افغان جګړه      ۶۰۰ مليارد ډالر مصرف کړي ، دامريکايي اقتصاد ديوه محاسبوي ارګان دارقامو له مخې:امريکا ددې لپاره چې په راتلونکو دوه کلونو کې له افغانستانه عسکر وباسې نيږدې     ۶مليارد  ډالر و ته به اړتيا ولري ، له دې څخه علاوه امريکا دعراق او افغانستان جنګونو له امله څو تريليون ډالر پوروړې هم ده ، د جنګونو په نتيجه کې امريکا پخپل تاريخ کې په لومړي ځل دجنګې مالي داخيستو پرېکړه کړې ، چې په اړه يې دحکومت او کانګريس ترمنځ خبري رواني دي او هم په دولتي لګښتونو کې دکمښت موضوع تر بحث او غور لاندې نيولې  . خوددې باوجو دکار پوهانو له نظره : دامريکا په عمومې اقتصا دکوم مثبت تاثير      نښې نه لېدل کېږي!

دپينټګان  له قوله : اوس مهال افغانستان کې ددوئ دجنګي تجهيزاتو اوتوکيو شمېر   ۷۵۰۰۰ته  رسې ، چې دا ټول د۳۶ مليارد ډالرو ارزښت لري ، په دې کې  ۵۰۰۰۰ جنګي موټر ، ټانګونه ، شوبلې اوعراده جات دي ، او  ۹۰ زره شاوخواه دوسلو اونوروپوځې توکيو کانتيز د  ي چې دسمندري بېړيو له لارې وړل کېږي .

په  ۲۰۱۱ ز کې امريکا دافغانستان دشمال له لارې ۴۲زره کانتينره راوړي ، په هغو کې          ۲۶۸۰۰ ټنه توکي اوسامانونه باروه  ،دپوځې توکيو اوتجهيزاتو دبيرته وړولپاره دامريکا په مخکې درې لارې دي : يو داچې امريکا يا کوم بل هيواد ته يې نقل کړي

دويم : په افغانستان کې يې خنسا کړي .

دريم  : افغانستان کې دننه په يوه پوځې هډه کې يې خوندي کړي

له عراق څخه انخلاء له افغانستان سره يوڅه توپير لري ولې له عراق څخه دانخلاء لپاره امريکايانو څلور  کاله وړاندې داسې پلان جوړ کړی و چې په اندېې هغه به ور سره مرسته وکړي خو افغانستان بيا له عراق سره يو مخ توپير لري ، دغه وجه ده چې له افغانستانه دعسکرو انخلاء  دامريکا لپاره يوه ننګونه ده ، عراق کې امريکا يان په ډېر  کم وخت کې دقصر بندر ګاه ته رسې ، بل له عراق سره په څنګ کې کويت دی هلته امريکا خوندي هډه لري     ،بيا  له هغه ځايه داردن بندر ګاه ته رسې خو افغانستان کې بيا يومخ کيسه بدله ده ، دلته امريکا له سمندر لرې ده ، طالبان په جنګ کې برلاسې دي هغوئ په اسانه نه پرېږدي چې امريکا خپل جنګي تو کې په سړه سينه له  ځان سره يوسې!

# وروستۍ پېښې په هند کې

# د مېرمنو ناوړه حالت څرګندوي

— شهیدزوی —

د هند په پلازمېنې نوې ډ یلي کې د دسمبر په ۱۶مې نېټې یوه ۲۳ کلنه محصله په روان بس کې په ډله ایزه توګه د جنسي تېري ښکار شوه.

ویل کېږي چې دا محصله د خپل ملګ ری یا نامزاد سره یوځ ای د سینما په پردې د فلم لیدلو نه پس د خپل کور پر لور روانه وه چې دا پېښ ه رامنځ ته شوه ، کله چې هغه د خپل دوست سره یوځ ای بس ته ورپورته شوه په بس کې ناستو ځوانانو ورپسې داناري پورته کړې چې په دې توري تیاره کې د یو پردي سړ ي سره دا مېړمن چېرته ځ ي؟!

کله چې د محصلې دوست عکس العمل ښکاره کړ نو پرې یې د وهلو پیل وکړ او چې محصلې مداخله وکړ ه نو وربا ندې یې حمله وکړ ه ، د ټولو له لورې د جنسي تېري ښکار شوه او ترڅ نګ یې جنایتکارانو هغه او د هغې ملګ ری د وسپنې په سیخ سخت زخمیان کړ ل ، د جنسي تېري او ټپي کولو نه پس تې ري کونکو د غه مې رمن د روان بس نه وغورځوله ، په سخت ټپي حالت کې هغه د درملنې په موخه روغتون ته یوړ ل شوه ،خو د مسلسلې درملنې سره سره هم هغه ښه نه شوه نو د هند دولت سنګا

پورته یوړ ه او هورې په یو روغتون کې د درملنې لاندې ونیول شوه چې ګټه یې ونکړه ، د دسمبر په ۲۹مې نېټې یې په روغتون کې سا ورکړ ه او په یوې خصوصي طیارې کې هند ته دراوړ لو نه پس یې د دسمبر په ۳۰م ې نېټې د هندوانو د رسم سره سم د مرګ وروستي مراسم پر ځ ای شول.

هو ! د هند دولت چې ددې کم نصیبې انجلۍ په عزت ساتنې و نه توانیدلو نو د علاج کولو نه یې هم عاجز شو او په دې اړ ه یې کمزوري نړۍ ته روښ انه شوه. ددې انجلۍ د مړینې خبر په ټول هیواد کې په ډېرې تیزۍ سره خپور شو ، ددې غمجن خبر په خپرېدو د هیواد ټوله فضا غمجنه شوه او سره له دې چې تې ري کونکي د دولت له لورې نیول شوي وو بیا هم په هې واد کې د احتجاج یو داسې سېلاب و چې د تمېدو نوم یې نه اخستلو ځکه چې هندي ټولنه اعتدال خوښونکې نه بلکې افراطي ټولنه ده که خبره د ظلم شي نو ظلم او وحشت یې تر هغه حدودو ورسېږ ي چې انسانیت خو پرېږ ده حیوانیت یې هم په را یادولو شرمېږ ي چې د ګجرات په ښځو کې د هندوانو له لورې د مسلمانانو په وړاندې ستر وحشت او د پاکستان جوړیدو پرمهال

پاکستان ته د هجرت کوونکو مسلمانانو سره ستر ظلمونه یې ژوندئ بیلګې دي.

او چې د چا په حق کې د آواز پورته کولو او دفاع خبره وي نو بیا یې هم حالت جنوني وي او تر هغه حده ورسیږي چې هیواد ،نظام او خلکو ته ستر زیانونه واړوي لکه ددې پیښې رامنځ ته کېدو نه پس چې د پلازمینې په شمول د هیواد په مختلفو برخو کې رامنځته شوی حالت یې ژوندی شاهد دی.

ددې انجلۍ د مړینې نه پس د لارو کوڅو او نه تر پارلمانه په هرځای کې ددې پیښې غندنه کېدله او د وګړو داسې کیفیت و تا به ویل چې دا په هند کې د بې عفتۍ رامنځته کیدلو تر ټولو ړومبۍ او بیخي د تمې خلاف پیښه ده حال دا چې داسې نچې نده ، بس دا د هند درسنیوو کمال و چې پیښه دې شکل وړاندې کړه ، رښتیا داده چې د بدنامۍ نه د هیواد د ساتلو په لار کې د هند رسنیو ډېر مهم رول ولوباوه ، د ډېرلوی مکر او فریب نه یې کار واخست ، په ښکاره یې ټول پروګرامونه د بشر او خصوصًا د میرمنو د حقونو لپاره وو خو غرض یې دبهر نړۍ فکر ته دا وراچول و چې ګینې په هند کې دا پیښه د تمې او توقع خلاف او د خپل نوعیت یواځینۍ پیښه وه حال دا چې خبره بیخي داسې نده ، په هند کې د مېرمنو حالت خورا ډېر خراب دی ،د لیکنې غرض مو هم همدا دی چې ددې پیښې په مقابل کې درامنځ ته شوي شدید عکس العمل نه دې څوک دا ګومان نه کوي چې ګڼې هند د میرمنو لپاره یوه محفوظه کلا ده.

هند چې د نړۍ د تر ټولو سترې دیموکراسۍ او د مېرمنو د حقونو د ساتنې او بشري ازادۍ دعوه لري د بشر او خصوصًا د مېرمنو د حقونو په اړه پکې وضعیت ډېر خراب دي چې د هند رسنۍ ، د هند مدني ټولنې او د بشر د حقوقو ادارې د مېرمنو په وړاندې د تاو تریخوالي پرضد ډېرې نارې سورې وهې خو نه یواځې دا چې په دې جرمونو کې کمی نه راغی بلکې ورځ تر بلې ډېرېږي.

د جون میاشت کې ټرسټ لاء نومې ادارې له لورې د نړۍ د ۲۰ اقتصادونو په باره کې یوه سروې تر شوې وه چې هند پکې د مېرمنو له پاره په خطرناکو هېوادونو کې تر ټولو وړاندې ښودل شوی و.

همدا راز څو ورځې د مخه د هند پارلمان ته د وینا پرمهال د پارلمان یوې غړې وویل، له دې امله چې زموږ هېواد کې په ډېرې بې رحمۍ سره د مېرمنو او بیا په ځانګړې توګه د غریبو مېرمنو اقتصادي او جسماني زبېښاک روان دی ځه خپل ځان ته په هندوستاني ویلو شرمېږم،، په هند کې هرڅوک دا مني چې د غریبو کورنیوو سره د تړاو لرونکو انجونو بې عفتۍ او په ډله ایزه توګه پرې د جنسي تیریوو پیښې مخ په زیاتیدو دي ،بیا خصوصًا د هیواد په شمال کې چې کمونستي ګوندونه پکې مخ په قوي کېدو دي پکې د غریبو او کمزورو قبیلو سره د تړاو لرونکو مېرمنو پرضد د جنسي او جسمي تیریوو پیښې په دې ډېرې تېزۍ سره زیاتیږي. او د تأسف وړ اړخ خو یې لا دا دی چې په دوئ کې کابو ۸۰٪ مېرمنې له دې وېرې پر دوئ د تر سره شوي تېري په اړه شکایت نه کوي چې د تېري کونکو له لورې به ووژل شي او یا به بیا هم د تېري ښکار شي.

او د تېري پر ضد دولت ته د شکایت نه کولو بل لامل دا هم دی چې د هند په محاکمو کې کار په ډېرې ری سستۍ مخ په وړاندې ځي او مصارف یې ډېر زیات وي ، حق ته د حقدار رسېدلو او مجرم ته د خپل جرم د سزا ورکول کېدلو تمه پکې کمه کېږي ، ډېرې پیښې خو د بدنامۍ نه د ځان ساتنې په موخه هم انجونې نه ښکاره کوي دا خبره یوازې د هیواد تر شمال محدوده نه ده

بلکې په ټول هېواد کې د جنسي تیریوو د پېښو او په اړه دولت ته دې کم شکایتونه وړاندې کېږي او لاملونه یې هغه دي چې مو وړاندې ذکر کړل.

هسې د هند د دولت پالسي هم همدا ده چې باید د جنسي تیریوو د پېښو او ټول شکایتونه دې د دولت امنیتي ارګانونه نه ثبتوي ترڅو دا هېواد په نړۍ کې له ډېرې بدنامۍ نه وساتل شي، همدا وجه ده چې که شکایت کوونکي غریب او بې سواده وي نو پولیس یې شړي ترڅو یې شکایت رسمیت ونه مومي.

خو د جنسي تیریوو کومې پېښې چې ثبتېږي ي او رسمیت پیدا کوي هغه هم څه کمې نه دي.

د هند د ((نیشنل کرائم ریکارډ بیورو)) یا ((ان.سي.آر.بي)) نومې ادارې له لورې یو څېړ نیز راپور خپور شوی د هند د رسنیو د وینا له مخې په دې راپور کې راغلي چې په هند کې پر مېرمنو او کوچیانو د تېریوو پېښې ورځ تر بلې زیاتېږي او دا په دې هیواد کې تر ټولو زیات خپریدونکي جرم دی، د نوموړې ادارې په وینا هره ورځ پر میرمنو د تېي ري ۶۰ پېښې ثبتېږي، د نوموړې ادارې له لورې د خپرو شویو ارقامو له مخې په ۱۹۷۱ کې پر مېرمنو د تېري او قتل ۲۰۴۳ پېښې رامنځ ته شوې وې چې د ۴۰ کلونو په تیریدو پکې ۸۷۳٪ اضافه وشوه او پدې توګه په ۲۰۱۱ کې پر مېرمنو د تېریوو ۲۴۲۰۶ پېښې رامنځته شوې.

په هېواد کې د انجونو تښتولو په جرم کې ۱۹.۴٪ ډېروالی راغلی دی، د بدفعلۍ نه د انکار په صورت کې د میرمنو په وژلو کې ۵.۸٪ ډېروالی راغلی دی او ترډ ډېر تشویش وړ خبره دا ده چې د مېرمنو په قاچاق کې ۱۲۲٪ ډېروالی راغلی دی. په زړه پورې خولا داده چې په ټول هېواد کې چې د تیریوو څ ومره پېښې ثبت شوي دي ۱۷٪ یې په پلازمېنې کې رامنځته شوي.

په هند کې هره ورځ پر کوچنیانو د تې ري ۱۶ پېښې ثبتېږي د پولیسو په وینا په دې پېښو کې هم ورځ تر بلې زیاتوالی راغ ي، په ۲۰۰۷ کې پر کوچنیانو د تېري ۵۰۴۵ پېښې ثبت شوې وې خو یواځې په ۵ کلونو کې پکې ۴۰٪ ډېروالی راغلو او په ۲۰۱۱ کې پر کوچنیانو د تېري ۷۱۱۲ پېښې ثبت شوې.

په ۲۰۱۱ کې د امریکا د ((انټرنیشنل سنټر فار ریسرچ آن وومن)) نومې امریکایې ادارې له لورې په یو خپور شوي راپور کې دا انکشاف شوی و چې د هند هر څلورم سړی په خپل ژوند کې یو ځ ل نه یو ځ ل په جنسي تېري کې ککړ ثابت شوی دی.

له دې امله چې هند یو شرقي هیواد دی په ټولنه کې یې د جنسي اړ یکو په اړه علني خبرې بدې ګڼ ل کیدې خو هندي فلمونو او سیریالونو کې په ډ یره بې باکۍ د فحشا خپراوي، د جنسي اړیکو ټینګولو ته د ځوانانو رادعوت کول او د دې اړ یکو د ټینګولو د طریقو ښ ودنې او د داسې لباس استعمال چې د مېرمنو د بدن نیمه او یا لږه او ډېره برخه پکې بربنډه وي د هند د ټولنې شرقي شکل او صورت بیخي ورمسخه کړی، په ځوانانو کې یې ډېره ستره جنسي ګمراهي رامنځته کړې او د هند په محیط یې د بداخلاقۍ توره ورځ راخپره کړیده چې د اوسنۍ پېښې د رامنځ ته کېدو نه پس د هند پوهانو هم همدا یاد شوي څ یزونه د میرمنو په وړاندې د تشدد د پېښو د اصلي عواملو په توګه په ګوته کړیدي.

په هند کې د اوسنۍ پېښې د رامنځ ته کېدو نه پس د هندولس، د مېرمنو د حقوقو د ساتنې ادارو، مدني ټولنو او نامتو څېرو په یو اواز د دې پېښې غندنه کوله او د مېرمنو د پت ساتنې او د پېښې عاملینو ته یې په دار د راز ړلو کلکه غوښتنه وکړه.

د مظلوم په حق کې اواز، دظلم غندنه او ظالمانو ته د سزا غوښتنه ټول سم او پر خای کارونه دي، مېړمې د خپل حیواني او شیطاني هوس ښکار کوونکو ته باید داسې د عبرت نه‌ډ که سزا ورکړل شي چې بیا څوک دد ې ظلم په اړه فکر هم ونکړ ي خو د هند دولت ،ولس ،مدني ټولې او بهر نړی باید په دې پوه شي چې یوائې د یو ې پېښې عاملینو ته سزا ورکول هیڅ ګته نه رسوي چې ترڅ و د عدل او انصاف ټ ولې غوښتې نه وي پوره شوي ، ټول ولس ته په یو نظر نه وي کتل شوي او دبډ ای او غریب ، هندو او مسلمان فرقو نه له منځه تللې نه وي.

په هند او د هند د ولکې لاندې کشمیر کې چې د زرونو مسلمانو مېرمنو په عزتونو تې ري شوېدي نه یوائې دا چې د هند دولت یې پر ضد څ ه ندي کړ ي بلکه دولت پکې مخامخ ککړ هم دی ، په تېږو ۲۳ کلونو کې د هند د ولکې لاندې کشمیر کې وحشي هندي امنیتي ځ واکونو په ۹۹۸۸ مسلمانو مېرمنو جنسي تېري کړ ي ، ۲۲ زره مېرمنې یې کونډې کړ ي او په زرونو یې شهیدانې کړ یدي ، په ګجرات کې د مسلمانانو د قتل عام پر مهال پر سونو مسلمانو مېرمنو په ډله ایزه توګه جنسي تېري شویدي ، د هیواد په نورو ډېرو برخو کې هم پر مسلمانو مېرمنو د تېري بوګنونکې پېښې رامنځته شوي او رامنځ ته کېږ ي خو په اړه یې د نورې نړی په څې ر مدني ټولې ، دولت او هندي ولس هم بیخي چپ دي ، نه یې ددې مظلومو مېرمنو له پاره د حق اواز پورته کړ ، نه چا د مجرمینو پر ضد کله لاریون وویست ، نه یې ورته د سزا غوښ تنه وکړه او نه یې هم پدې اړه کله خفګلن ښکاره کړ.

دا هم میرمنې دي خوجرم یې دادی چې مسلمانانې دي نو ځکه د متعصبو هندوانو په اند ددې وړ دي چې دهر ډول ظلم او وحشت ښکار شي.

د حیرانتیا خبره ده چې د اسلامي نړی په کوم ګوډ کې کورنی شخړ ه رامنځته او میرمن پکې د کوچني زیاتي ښ کار شي نو برطانیه امریکا ،نورې لویدیځې نړی ،د بشر د حقوقو په نوم غربي ادارو او د ملګوو ملتونو ادارې بیا نړی په سر اخستې وي ، د پېښې غندنې کوي او مجرمینو ته د سختې سزا ورکولو لپاره په هیوادونو فشارونه راولي خو د هند د ولکې لاندې کشمیر کې چې د مسلمانو مې رمنو سره کوم ظلمونه او وحشتونه روان دي نو ورباندې چپه خوله دي ، مسلمانې میرمنې خو مسلمانې دي په هند کې چې هر کال په لسګ ونوزره نامسلمانې غریبې مېرمنې د تېریو ښکار کېږ ي په حق کې یې ددوئ له لورې غږ نه راپورته کېږ ي ځکه چې بیا یې تجارتي او سفارتي ګټې دګ وا ښ سره مخامخ کېږ ي او ځکه چې تېري کونکي مسلمانان نه دي ،بس دا د لویدیځ اصلي څېره ده ، همدایې بشر دوستي او همدایې د میرمنو حقونو ته ژمنتیا ده.

په هند کې د اوسنی پېښې په شمول هر کال پر میرمنو د تېري دلسګونو زرو پېښو رامنځته کېدل د هغه وګړو خولو ته درنده څپېړه ده کوم چې د جرمونو په وړاندې د سزا اسلامي قوانین ظلم کڼ ي. په هند کې چې اسلامي حاکمیت و ولې داسې ناوړ ه پېښې نه شوې رامنځ ته کیدای؟ که اوس هم اسلامي اصول دلته پلې شي د هر ډول ظلم پوره مخنیوی به وشي.

دهند دولت او ولس که د مذهبي تعصب نه لاس واخلي او په هې واد کې په تې زی سره دخپرې‌دونکې بد اخلاقی د اسبابو مخنیوی وکړي بیا هم په دې پېښو کې کموالی راتلای شي ،دا به په هند کې ډې ر ستر مثبت بدلون وي خو متأسفانه چې په اوسني حالت کې یې زیاته تمه نه شي کېدای .

# مصر کې نوی بحران!

## داسلامې ګوندونو بریاوې او مخکې پرتې ننګونې...

مفتي سجاد.................................

مصر د شمالي افریقا یو مهم عربي او اسلامي هیواد دی، چې دنړۍ او سیمې پر سیاسي او پوځي چارو کې د مؤثر رو ل او کردار خاوند دی. پخوان ی امپراطور "حسني مبارک" دامریکا او اسراییل په ښکاره او پټ ملاتړ تر دري لسېزو زیات د دغه هیواد دواک دټولو چارو محور و، نېږدې دوه کاله وړاندې چې په عربي نړۍ د پراخو سیاسي بدلونو قوي څپه پورته شوه، تیونس کې زین العابدین له واک وشړل شو، دویم عربي هیواد مصرو چې هلته هم دحسني مبارک ددري لسېزو څخه دزیاتې ظالمانه واکمنۍ دستنو په لړزیدو، دهغه دمزوچړچو او بخت ستوری له مداره پریوت او له توقع سره سم مشهور اسلامي ګوند "اخوان المسلمین" په ګډون ځو اسلامي ګوندونه واک ته په رسیدو بریالي شول داکار دامریکا، اسرایل او لویدیځ لپاره دیوې لوې درنې جټکې څخه کم نه و.

له هغه مهال راهیسې چې په مصر کې اخوان المسلمین او نوراسلامي ګوندونه دانتخاباتو له لارې واک ته رسیدلي او ښاغلی محمد مرسي ددغه هیواد دولسمشر په توګه لوړه کړې، پرله پسې مغرض هیوادو نه هغه ته دستونزو په جوړولو لګیادي، خو نوموړی هر ځل دستونزو له هرپړاوه په ښه بریالیتوب تیر شوی او دستونزو له هر پړاوه په زړورتیا اوبري پوریوتی.

هغه مهال چې دولسمشرۍ دټاکنو په پایلو کې محمد مرسي وړونکی اعلان شو، له ډیرو مسلمان کتونکوسره دا اندیښنه وه، چې دمصر غرب پلوی پوځ به واک ته داخوان درسیدو په وړاندې مزاحم شي! خو اخوان له هغه مرحلې هم سرلوړی پوریوت او له پوځ نه د واک دانتقال پروسه یې په خورا زړورتیا بشپړه کړه

په مصر کې پوځ چې دلسېزو راهیسې دمصر دټولو سیاسي او پوځي چارو د واک اصلي سرچینه ګڼل کید، ښاغلي مرسي په ډېرهوښیار ی سره په حکومتي او سیاسي چارو کې دپوځ رول او اغېز پای ته ورساو، دا ګام یې دو مره ناڅاپه پورته کړ چې دامریکا په ګډون هیڅ یوه لورې ته دمداخلې اولاسوهلو فرصت په لاس ورنغی.

دتېرو ځولسېزو راهیسې په مصر کې یونا اسلامي قانون پلې دی، دمرسي لخوا تدریجأ دهغه دتغیرولو او پکې دیولړاصلاحاتو راوستو پرضد

سیکولر ګوندو نو پراخ احتجاجونه او لاریونونه و کړل، لوید یځو رسنیو هم دهغوئ په ملاتړ او دمحمد مرسي پر خلاف په پوچ و تبلیغ اتو او پروپاګند ونو ځانونه ستړي کړل ،چې په دي یو وار بیا اندیښني پیدا شوي، چې هسې نه مصر کې داسلامي ګوندونو د ځولسېزو وروسته دشته لاسته راوړنې هدر نشي ! د سختو او پرلپسې احتجاجونو له امله مرسي اړشو چې دنویو قانوني اصلاحاتو منظورولو په غرض ټولپوښتنه اعلان کړي.

د هغه داصلاحاتو پر ضد دمصردمحکمو قاضیانو هم داحتجاج کوونکو په ملاتړ کې دقضیو څېړل وځنډول ، دي کارهم مرسي له خپل دریځه په شا نکړ او ترپایه ټینګ پاتې شو ، دټولپوښتنې په نتیجه کې دمصر ولس په زیات دروند اکثریت قانون کې اصلاحات راوستل منظور کړل او دسیکولرزم دپلویانو په هیلو او ارمانو یې امبار خاورې واړولې.

ټولپوښتنه په دوه جلا مرحلو کې بشپړه شوه ،په ترڅ کې یې له نیمایي زیاتو رایه ورکوونکو دمرسي لخوا قانوني اصلاحات توثیق کړل ، وروسته محمد مرسي هغه اصلاحات لاسلیک او دپلي کولو په باب یې ځانګړی فرمان صادر کړ. او هیله یې وښوده چې د دې وروسته به په مصر کې رواني سیاسي ناندرۍ پای ته ورسي ، او ټول مصریان به په ګډه دمصر دکمزروي اقتصاد دبډایوني لپاره یوبل ته دمرستې لاسونه ورکړي.

دانتخاباتو دکمیسیون غړي قاضي سمیر عبد المطیع په قاهره کې یوي خبري ناستې ته ویلي:په ټولپوښتنه کې درایو اچونکو سلنه ۳۲.۹ وه ،چې په دې کې ۲۳.۸ دنویو قانوني اصلاحاتو په پلوی رای کارولې ، دنوموړي له قوله:په هیواد کې څه له پاسه **۵۰** ملیونه وګړي درایو ورکولو اهل دي ، دهغوئ له منځه اوولس ملیونه وګړو په ټولپوښتنه کې راې کارولې ، چې له هغوئ نه څه باندې لس ملیونه راې دنویو قانوني اصلاحاتو په پلوی کاریدلې او شپږ ملیونه شاوخوا دنویو قانوني اصلاحاتو په مخالفت کارول شوي.

دټاکنو کمیسیون لخواه دټولپوښتنې دپایلو اعلانولو وروسته په دوه میاشتو کې دننه پارلماني ټولټاکني کېږي ، په دې توګه اخوان المسلیمن او ورسره ملګري ګوندونه په راتلونکو دوه میاشتو کې به هم دسیکولرګوندونو سره یوه درنه سیالي په مخکې کې و لرې.

دقانوني اصلاحاتو دتوثیق وروسته دمصر صدراعظم هشام قندیل وویل: په ټو لپوښتنه کې هیڅ لور ي هم په بل بری ندی موندلی، بلکې نوی قانون دټولو لپاره دی ، پکار دی ټول ورته درناوی وکړو ، څو حکومت فرصت ومومي چې دمصر داقتصاد پیا وړي کولو بهیر پیل کړي.

دکتونکو په اند: په ۲۰۱۱ زکې دحسني مبارک واک دړنګېدو وروسته اسلامي ګوندونو په مصر کې یوشمېر لاسته راوړنې درلودي ، چې له امله یې دمصر سیکولر کړۍ هڅه کوي چې دغربې هیوادو په مرسته مصر کې تشنج رامنځته کړي ، او بیرون ته داسې وښيي چې داسلامي ګوندونودواک ترسیورې لاندې ددوئ حقوق خوندي ندي او په ولسمشر مرسي تورپورې کوي چې هغه نوي قانوني اصلاحات داسلامپالو لپاره کړي

په ټولپوښتنه کې جوته شوه چې دمصریانو دروند اکثریت دمرسي لخوا شوي قانوني اصلاحات غواړي اوتري ننګه کوي ،چې په دې سیکولران

ناهیلې شوي او بریښې چې د بر ژر به نوې قانوني اصلاحات اومني.

دنوي بحران له امله ډېرو انګېرله چې مصر دبل بدلون په مورګو ولاړدی ، ولې داپوزیسیون ترشاه دامریکا په ګډون ټول لویدیځ هیوادونه ولاړدي او په کلکه تري ملاتړ کوي ، هغوئ نه غواړي چې دمصر په څېر یوه هیواد کې اسلامې ګوندونه په خلاص مټ واکمن وي البته دا د ډاډ وړده چې دمصر اوسنی قیادت هر ګام په هوښیارۍ پورته کوي ،دټولپوښتنې پایلو له اعلانیدو وروسته مرسې نورهم ځواکمن شو ، دبري ترلاسه کولو ورسته دمصر ولس ته هغه پخپله وینا کې وویل: له دې وروسته به هغه پخپل ټول توان هڅه وکړې چې دمصر کمزوری اقتصادپه پښو ودروي ، نوموړي دمصر ولس ته دمبارکۍ ویلو په ترځ کې داپوزیسیون له غړو وغوښتل چې دملې روغې جوړې لپاره دې دخبرو اومذاکراتو میزته ورشي څو مصر دنړۍ دپیاوړ هیوادوپه ډله کې شمار شي.

دسیاسې چارو کارپوهان وایې:دمرسې په وړاندې ګڼ چیلنجونه پراته دي ، په وروستیو کې دهغه د کابینې دوه وزیرانو استعفا ورکړي ، چې داکار عموماً ددې تاثر انګېزه لري ، چې دهغه دخپل ګوند په لیکو کې دیوشمېر مسایلو په سر هم اختلاف شتون لري چې داکار دنوموړي مشکلات سیوا کولی شي. ددې په ځواب کې چې مرسې غواړي خپل واک سیوا کړي د اصلاحاتو دتوثیق وروسته ویلې: واک یې له پخوا کم شو دی ، په قانون کې هغه دخلکو خادم ښودل شوی ، هم دا راز په نویو اصلاحاتو کې دبیان اومطبوعاتو ازادي منل شوي ، دبشر دحقوقو درناوی شوی دی، دادیانو داقدارو ددرناوي تضمین ورکړل شوی.

په مصر کې ۹۰ سلنه خلک مسلمانان اولس عیسایان دي ، بهرني لاسونه نه غواړي چې په مصر کې اسلامي اقدارو او اخلاقوته یو ژمن حکومت په واک کې پاتې وي، دغه وجه ده چې دمصر کورنیو جنجالونوته هوا ورکوي اوداپوزسیون مشران په شا ټپوي چې داسلامې اصلاحاتو دمخنیوي په وړاندې پورته شې، او پرینږدي چې مرسې اودهغه ملګري مصرد پخواني اسلامې برم په لیکه رهبري کړي ، کنه داخبره دلمر پشان ښکاره ده چې دمصر دخلکو بشپړ اکثریت اسلام غواړي اوترې ننګه اودفاع کوي ، بل غربې هیوادونه په دې اندیښمن دې چې هسې نه په مصر کې داخوان المسلمین په څېر ګوند خپلې ریښې وغځوې و لې په دې سره به د غربې هیوادو دننه هم اسلامې ګوندونه تقویه شې اوښکاره ده چې غربیان پخپلو هیوادو کې داسلامې فکر لرونکو ګوندونو پیاوړي کېدل نه زغمي.

داسې شواهد ترلاسه شوي دي چې غربې هیوادونه دمیډیا له لارې دنویو اصلاحاتو په خلاف دپروپاګند حربه کاروي ، په خاصه توګه دامریکا فکري حلقې په دې کار کې له نورو څخه وړاندې دي اوکوښښ کوي چې دمصر دننه اوبیرون داوسنې حکومت په ضد ذهنیتونه جوړکړې ، او هڅه کوي چې دامریکا دمنځنې ختیځ په پالیسې کې داسلامپالو دغلبې مفلوجو لو له دریځ په شا تګ رانشي.

په خاصه توګه اسرایل مصر کې داخوان المسلمین واک ته رسیدل دځان په وړاندې قوي ننګونه بولې ،داسرایلي چارواکو له خرګندونو څخه جوتیږي چې دمصر دننه اوسنی حالت داسرایلي لاس وهنو سره تړاو لري

دعبراني تلويزون دواشنګټن نماينده په يوه راپور کې (کوم چې د تير۲۰۱۲ زکال دد سمبر په۵مه نېټه خپور شو) ويلې:چې امريکا کې ميشت يهودي ګوندونو مشرانو او دکانګريس يهودي غړي له امريکا ، کاناډا ، او اروپا غوښتې چې دمرسي له حکومت سره پريکون اعلان کړي ، دمرسي په ګډون دهغه دحکومت هيڅ يوه استازي ته پخپلو هيوادو کې هرکلی ونه وايې ،چې په دې هڅو کې واشنګټن کې داسرايل سفير ( مايکل اورون) مرکزي رول لوبوي اودليل دا وړاندې کوي چې مرسي په مصر کې دټولواک جوړيدو نيت لري



داسرايل دبانکې برخي دتحقيق او پلټنو مرستيال (ميشل) ويلې:دمرسی دحکومت په راتلو نتن ياهو اودمالې وزير ديته اړشول چې په دفاعي بوديجه کې زياتوالی راولې ، چې امله به يې داسرايل وګړي ديته اړشی چې درنه ماليه ورکړي، اسرايل باورلري چې مرسې ديهودو لاسونه وتړل ، له دي وجې

دتير ۲۰۱۲ زکال ددسمبر په ۸مه نيټه جنرال يعکوف( داسرايل دامنيتي چارو مشر )عبراني تلويزون ته ويلې:دامريکا ولسمشربايد په مصر کې له روانو جنجال ګټه پورته کړي اودمرسي دحکومت پرضد ګام واخلي اوپه عربو کې چې داسرايل پرضد کوم منفي تاثر نورهم وغځوي.

ليدل کيږي هغه زندۍ کړي ، داسرايل دبهرنيو چارو وزير دسمبر په۲مه ويلې: په مصر کې دمرسي حکومت په راتلو داسرايل صلاحيتونو ټکان خوړلی...

داسرايل يو مبصر ددسمبر په ۵مه نيټه ويلې:زمونږ پوځې قيادت پوهيږي چې دمرسې حکومت ارام نه پريښودل داسرايل لپاره څومره اهميت لري؟ ددې اونورو څرګندونو څخه دانتيجه اخستل کيږي چې مرسې دډز پرته داسرايل اقتصاد ته څومره زيان رسولی ؟

داخوان واک ته درسيدو وروسته اسرايل خپله دفاعي بوديجه څو واره اضافه کړي داسرايل يوه وزير کاټن ددسمبر په ۱۴مه نيټه عبراني تلويزون سره په مرکه کې ويلې:دمرسي حکومت زمونږ په وړاندې ترټولو لوی ستراتيژک ګواښ دی ، هم دادليل دی چې مونږ خپله دفاعي بوديجه دپخوا په مقايسه څو واره زياته کړه !

هغوئ هڅه کوي چې دهغه پرضد سيکولر ګوندونه تقويه کړي ، داسرايل ددفاعي بوديجې زياتول هم دا معنی لري چې هغوئ دېټو لاسوهنو له لارې سيکولر ګوندونه تشويقوي چې کرار نشي اوخپلو احتجاجونه

نو اشده اړتيا ده چې دمصر نوی قيادت په کلک احتياط خپل پيل کړي سفر ته دوام ورکړي څو دمغرضو هيوادو له لوري په غوړول شوي جال کې ونه نښلي اوتل له زغم او حوصلې کاروا خلي ولې کفري هيوادونه ورته په کمين کې دي ،په يوه نه يوه پلمه غواړي چې پرضد يې دسيسې اوتوطئې جوړې کړي !

# مناقشهٔ شبهاتی درمورد مشارکت در دیموکراسی وپاسخ به آن

مولوی عبدالهادی (مجاهد)

عدهٔ ازعلمای منسوب به اسلام که تحت تأثیرفکری غرب رفته اند، وبامنهج نبوی در امر اقامهٔ حکومت اسلامی از طریق جهادوفداکاری نا آشنا هستند، و یا هم میخواهند درهر نوع شرایطی از امتیازات، رعایتها، مناصب، وتشریفات حکومتی در هر نوع حکومت برخوردار باشند سعی میکنند به هر قیمتی که باشد برای مشارکت درحکومتهای دیموکراتیک وپارلمانها دلائلی را از شریعت اسلامی برای خودبتراشند، وبااستدلالات بی جا وناموجه برای جواز کارخوددر نظام دیموکراسی شبهاتی رانیز مطرح میکنند، که اکنون همین شیوه را بعضی از اشخاص وگروه های نام نهاد اسلامی افغانی نیز دربرابر دیموکراسی تحمیلی امریکا اتخاذ کرده اند. بعضی از دلائل وشبهات آنها قرار ذیل اند:

### شبهه اول - کار کردن یوسف علیه السلام با پادشاه کافر مصر

عدهٔ ازمشارکت کننده گان در دیموکراسی استدلال میکنند که یوسف علیه السلام درحالیکه پیامبر الله ﷻ بود درحکومت پادشاه مصر که کافر بود منحیث وزیر کار کرده است، وبه هین دلیل اکنون مسلمانان نیز میتوانند در یک نظام کافر کار کنند.

استدلال بردلیل فوق الذکر برای کارکردن درنظام دیموکراسی بنابر وجوهات ذیل باطل است:

الف: پارلمانهای عصر حاضر پارلمانهای شرکی وطاغوتی اند، ودلیل آن اینست که پارلمانهای امروزه ازصلاحیت مطلق تشریع (تحلیل وتحریم) برخورداراند، در حالیکه تشریع (تحریم و تحلیل) تنها وتنها حق الله ﷻ است. ولی دردیموکراسی تشریع وتقنین حق مردم است که پارلمان ممثل آنها میباشد.

اسلام به هیچ کسی قطعاً اجازه نمیدهدکه در امر (حاکمیت علیا) و(حق تشریع) با الله ﷻ شرک ورزد. ولی در دیموکراسی نه تنهاتشریع (حلال گردانیدن) و(حرام گردانیدن) حق مردم است، بلکه دیموکراسی به زعم خودش الله ﷻ را ازین حق بطور کلی محروم گردانیده است.

از همین جهت اسلام یک دین علیحده، ودیموکراسی یک دین کاملاً جدای دیگری است، و(مصادر تشریع) در هریکی ازین دو ازهم جدا اند. مصدر تشریع در اسلام (وحی الهی) و(ارشادات رسول الله ﷺ) است .امادر دیموکراسی خواهشات وهوسهای مردم مصدر تشریع اند. الله ﷻ از بنده گانش تنها دین اسلام را می پذیرد، نه دیموکراسی را، الله ﷻ می فرماید:

﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الإِسْلاَمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴾ آل عمران/۸۵.

ترجمه: (هر که دین دیگری را غیر از اسلام برگزید هرگز ازوی قبول نگردیده ودر آخرت از جمله زیان کاران خواهد بود).

پس آیا کسی چنین تصوری کرده می تواند که یوسف علیه السلام کدام دین دیگری را غیر ازدین اسلام قبول کرده باشد؟ و یاکدام ملت دیگری غیر از ملت اجداد موحدش را برگذیده باشد؟ ویابمقصداحترام و پاسداری از قانون کفری حلف وفاداری ادا نموده باشد؟ و یاهم مطابق آن قانون گذاری کرده باشد؟طوریکه حال پارلمانهای عصر حاضر است؟

یوسف علیه السلام حتی درزمان محبوس بودن واستضعافش که هیچ چیزی دراختیار نداشت نیز ازشرک ومشرکین اعلان برائت نموده بود، چنانچه قرآن کریم ازو حکایت میکند: ﴿ إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لاَّ يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَهُم بِالآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ 37 وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَآئِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَقَ وَيَعْقُوبَ مَا كَانَ لَنَا أَن نُّشْرِكَ بِاللّهِ مِن شَيْءٍ ﴾ سوره یوسف:۳۷ –۳۸.

ترجمه: (یقیناً من (ازورود به ) کیش گروهی دست کشیده ام که به الله ایمان نمی آورند وازروزآخرت منکر هستند، وپیروی از آئین پدران خود ابراهیم و اسحق، و یعقوب (علیهم السلام ) کرده ام. ما را نسزد که چیزی را شریک الله بسازیم).

بعد ازین جریان یوسف علیه السلام حقیقت شرکت وتوحید را بیان می نماید، و اینرا به صراحت اعلان مینماید که تنها حکم الله نافذ باشد، وباید تنها الله جل جلاله پرستیده شود.

چنانچه قرآن کریم ازو حکایت میکند: ﴿ يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ 39 مَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِهِ إِلاَّ أَسْمَاء سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَآؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلّهِ أَمَرَ أَلاَّ تَعْبُدُواْ إِلاَّ إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لاَ يَعْلَمُونَ ﴾ سوره یوسف/ ۳۹ – ۴۰.

ترجمه: (ای دو دوست زندانی من !آیا خدایان پراگنده بهتراند یا همان الله یگانه و غالب ؟این معبودهای که غیر از اله می پرستید چیزی جز نامهای (بی مسمی ) نیست که شما و پدرانتان آنرا خدا نامیده اید. الله حجت و برهانی بر (خدانامیدن ) آنها نازل نگرده است ،فرمانروائی از آن الله است و بس ،الله دستور داده تا جز او را نپرستید، این است دین راست وثابت،ولی بیتشر مردم نمی دانند).

پس آیا این ممکن است که یوسف علیه السلام در حال محبوس بودن وضعیف بودنش شرک را با آوازرسا وبلند رد نماید ،وحاکمیت را تنها از آن الله بداند، ولی بعدها دروقت آزادی وقوت این حقیقت را بپوشاند، وطبق دین پادشاه فیصله کند؟این درحالیکه الله جل جلاله او را در زمین تمکین نیز داده بود ؟!

حرف دیگری که قابل ذکر است اینست که پارلمان از وزارت فرق دارد. پارلمان شریعت وقوانین می سازد، ووزارتها آنرا تنفیذ مینمایند. پس آنانیکه درپارلمانهای کنونی مخالف دین الله جل جلاله قوانین میسازند، وآنرا تصویب می کنند، جرم ایشان نسبت به کسانی که قوانین آماده شده را تنفیذ می نمایند بیشتر می باشد.

پس استدلال آنهای که رفتن به پارلمان را برکار کردن یوسف علیه السلام قیاس میکنند صحیح نیست. ولی این بدین معنی هم نسیت که رفتن به پارلمان ناجائز،ولی قبول نمودن وزارت در حکومت کفری جائز باشد.

قبول کردن وزارت درنظامهای طاغوتی کنونی که بر ضد دین الله اعلان جنگ نمود ه اند، بادوستان الله جل جلاله می جنگند، وبادشمنان الله جل جلاله دوستی و ائتلاف می کنند نیز حرام است،ودرین مورداستدلال برعمل یوسف علیه السلام باطل میباشد. زیرا وزیران درحکومتهای کنونی نیز سوگنداحترام وپاسداری همان قانون اساسی رابجا می آورندکه بر اصول کفری دیموکراسی استوار است. درحالیکه الله متعال جل جلاله امرفرموده که برهمچوقوانین طاغوتی کفرباید ورزید، الله می فرماید: ﴿ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُواْ إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُواْ أَن يَكْفُرُواْ بِهِ ﴾ سورة النساء/۶۰.

ترجمه: (میخواهند دعوایشانرابرای فیصله به طاغوت ببرند ،درحالیکه به ایشان امرشده تابرآن(طاغوت)کافرشوند).

اکنون اگر کسی چنین گمان بردکه یوسف علیه السلام نیز قانون طاغوتی را پذیرفته، وبمقصد پاسداری واحترام ازو سوگند بجاآورده باشد ،درحالیکه الله جل جلاله بدی را ازو نفی نموده، واو را از بندگان مخلصش گردانیده است، یقیناً این گمان کننده تکذیب کنندۀ یک پیغمبر الله جل جلاله میباشد، وکافرتر ازهر کافری میگردد ،ویقیناً از ملت اسلام خارج می باشد.

ب: وزیران درحکومتهای کنونی قبول کننده ومنفذین قوانین وضعی کفری هستند که درهمهٔ مسائل باید پابند قوانین وضعی باشند. پس آیا ممکن است در مورد یوسف علیه السلام نیزچنین گمان کرد که موصوف معاذ الله پابند همچو قوانین وضعی کفری ظالمانه و باطل بوده باشد؟

اگر کسی درمورد اوچنین گمان کند، وسپس به فعلش استدلال نماید، یقینا او یکی از پیغمبران الله ﷻ را به پذیرفتن قوانین کفری متهم نموده باشد، که این کار خودش کفر وخروج از دین اسلام است. زیرا الله ﷻ پیامبرانش را برای آن فرستاده است تا امت هایشانرا درس بیزاری ازطاغوت دهند، وآنها راتنها به پذیرفتن احکام الله ﷻ دعوت نمایند، الله ﷻ می فرماید: ﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولاً أَنِ اعْبُدُواْ اللهَ وَاجْتَنِبُواْ الطَّاغُوتَ ﴾ سورة النحل/ ۳۶.

ترجمه:(بی گمان ما درهر امت رسولی فرستادیم تا برای مردم بگوید: عبادت الله را بکنید، و ازطاغوت خود را نگهدارید)

و پیغام رسالت یوسف علیه السلام نیز همین بود. پس چگونه ممکن است که یوسف علیه السلام با وجود پیامبربودنش قانون طاغوت را پذیرفته باشد، و مطابق آن فیصله نموده باشد؟

ج: وزارت یوسف علیه السلام درحقیقت تمکینی بود که از جانب الله ﷻ به او در زمین داده شده بود، بناءً او مطابق حکم الله ﷻ فیصله می نمود، وهیچکس به او ضرری رسانیده نمیتوانست، ونه کسی قادر به سبکدوش کردن او از وظیفه اش بود. ونه او را به اجرای کدام فیصله مجبورکرده میتوانست، وهمین معنای (تمکین فی الأرض) میباشد.

آیا درحکومتهای طاغوتی عصر حاضر وزراء از همچو صلاحیتهای مطلق برخوردار هستند؟ تا قیاس شان بر ورزات یوسف علیه السلام صحیح گرد د؟ وزیران عصر حاضر در بندهای قوانین طاغوتی چنان گیر اند که به نفع اسلام هیچ حرکتی اجراء کرده نمیتوانند.

یوسف علیه السلام در جریان کارش از هر نوع مراقبت وتعقیب عدلی آزاد بود، زیرا زمانیکه پادشاه یوسف علیه السلام را از زندان بیرون کشید، ویوسف علیه السلام حکایت خود را به وی بیان نمود، سخنان او در پادشاه چنان اثر نمود که به او گفت ﴿ إِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مِكِينٌ أَمِينٌ ﴾ سورة یوسف/ ۵۴.

ترجمه:(بدون شک تو امروز نزد ما صاحب مرتبهٔ بلند وامین هستی). مفسرین می نویسند: از آن به بعد پادشاه مصر تنها یک حیثیت تشریفاتی داشت، وهمهٔ کارها را یوسف علیه السلام انجام می داد، وبنام (عزیز) یاد می گردید. بعضی از مفسرین بالاتر ازین ادعا می کنند که پادشاه مصر درآنزمان به دست یوسف علیه السلام مسلمان گردید، و مطابق دین یوسف علیه السلام اجراءت می نمود.

پس بدقت دیده شود که آیا وزرای صالح ومسلمان درحکومتهای طاغوتی کنونی نیز دارندهٔ همچو مرتبهٔ هستند؟ واگر وضعیت کنونی از وضعیت زمان یوسف علیه السلام متفاوت باشد پس در آنصورت قیاس درست نمی باشد.

د: الله ﷻ درحق یوسف علیه السلام از تمکین یادآوری نموده است: ﴿ وَكَذَلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الأَرْضِ ﴾ سورة یوسف/ ۲۱

ترجمه: (وهمینگونه یوسف علیه السلام را درزمین تمکین بخشیدیم). لفظ تمکین درین آیت مجمل است، ولی درجای دیگری الله ﷻ تفسیر لفظ (تمکین) را چنین بیان فرموده است: ﴿ الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الأُمُورِ ﴾ سورة الحج/ ۴۱.

ترجمه:(آنانیکه هرگاه ما آنها را درزمین تمکین بدهیم نماز را اقامه کنند، وزکات ادا نمایند، وبه نیکی امر نموده و ازبدی منع کنند، وخاتمهٔ همه کارها مخصوص الله و در اختیار الله است.

اینکه الله ﷻ در مورد یوسف علیه السلام نیز از تمکین دادن به او در زمین یاد آوری نموده، پس یوسف علیه السلام نیز ازجمله همان مردمانی بود که در وقت قدرت بر مردم اقامهٔ نماز نموه ونظام زکات را قائم میکرد، وامر بالمعروف ونهی عن المنکر مینمود. ودرین سلسله بزرگترین معروف (توحید) بوده، وبزرگترین همهٔ منکرات (شرک) میباشد. یوسف علیه اسلام ازدین برحق پدران خود متابعت نموده ومطابق همان دین فیصله مینمود. وهیچگاه بر قانونی که الله متعال ﷻ آنرا نازل نه کرده باشد فیصله نمیکرد. ونه هم به وضع قوانینی که مخالف قانون الله ﷻ باشد اجازه میداد. واگر کسی درمورد اوعلیه السلام برخلاف این حقیقت عقیدهٔ دیگری داشته باشد مسلمان باقی نمی ماند.

درحکومتهای طاغوتي عصر حاضر اگر وزیری کوچکترین کاری را به نفع اسلام انجام دهد فوراً از وظیفه اش سبکدوش میگردد ،ویا به جرم خیانت به حکومت، ومخالفت با قانون اساسی به زندان افگنده میشود. واگر بالفرض حکومت باهمهٔ وزارتهایش ازطریق انتخابات بدست مسلمانان هم بیفتد، باآن هم به آنهافرصت حکومت کردن داده نمیشود ،چنانچه دربعضی ازکشورهای جهان اسلام بمشاهده رسیده .پس گفته میتوانیم که استدلال برکار یوسف علیه السلام بهانهٔ بیش نیست.

**شبهه دوم – استدلال بر عمل نجاشی (رض)**

عدهٔ از مسلمانانیکه مرض دیموکراسی در قلبهایشان جاگرفته برای جواز مشارکت درنظام های دیموکراتیک به عمل نجاشی (رض )استدلال مینمایند، ومیگویند باوجود اینکه نجاشی یک پادشاه مسلمان بود ،ولی حکومت اسلامی را نافذ نکرده بود. لیکن با آنهم رسول الله ﷺ او راستوده واز وی بنام (عبدصالح ) یادآوری نموده است، وبروی نماز جنازهٔ غائبانه نیز ادا نمود ه،پس اگر درعصر حاضرهم حاکمی نظام اسلامی را نافذ نکند ،ویا مسلمانان دریک نظام غیر اسلامی سهم بگیرند ،کار ناجائزی رامرتکب نشده باشند.

**نجاشي (رض) کی بود ؟**

نجاشی آن پادشاه حبشه بود که درسال پنجم بعثت به آنعده از مسلمانانیکه پیامبر ﷺ آنها را از مکه مکرمه به حبشه فرستاده بود پناه داد. این پادشاه بدست همین مهاجرین اسلام را قبول نموده ومسیحیت را ترک گفت .او مهاجرین را باعزت واحترام نگهداشت،و زمانیکه قریش هئیت دونفری را باتحائف نفیس به منظور استرداد مهاجرین مسلمان به حبشه فرستادند ،بعد ازمناقشه وتحقیق وقتی ازظلم قریش ومظلومیت مهاجرین اطلاع یافت،حاضر به تسلیمدهی مهاجرین به قریش نگردید ،ووفد قریش را نامراد وبا دست خالی مرخص نمود. وسپس به رسول الله ﷺ اطلاع فرستاد که او بدست جعفر (رض) اسلام را پذیرفته ،وتوسط او به رسول الله ﷺ بیعت نموده است.وبعدها دریک مرحلهٔ دیگری فرزندش را به همراهی یک وفد بزرگ بهدف تأیید ونصرت رسول الله ﷺ به مدینه فرستاد ،واز پیامبر ﷺ درخواست که اگر ایشان بخواهند اماده هجرت به مدینه منوره نیز هست .رسول الله ﷺ درحقش دعا نمود ، وزمانی که نجاشی وفات یافت بروی نماز جنازهٔ غائبانه نیز خواند.

اما اکنون اگرعدهٔ استدلال میکنند ومیگویندکه نجاشی مسلمان بود، ولی شریعت اسلامی رانافذ نکرده بود ،پس اگر آنها نیزهمچوعملی را انجام دهند باکی ندارد. این استدلال بنابردلائل ذیل باطل است:

۱- مدعیان این ادعا که گویا نجاشی شریعت رانافذ نکرده بود هیچگونه دلائل قطعی وقابل اعتبار در دست ندارند .ایمان آوردن غائبانه نجاشی (رض)،ودفاع ونگهداری از مسلمانان مهاجر درسرزمینش، مخالفت ورزیدنش با بطریکها (علمای مسیحي )، وفرستادن پسرش با وفد شصت نفری به نزد رسول الله ﷺ بهدف تأیید ونصرت ایشان،همه وهمه به این دلالت میکنند که او درحالت مسلمانی مطابق حکم ونظام طاغوت فیصله نمیکرد .

۲ –استدلال بروضعیت نجاشی قیاس است ، وقیاس در اصول آنرا گویند که بریک حادثهٔ که در موردش نص شرعی موجودنباشدحکم حادثهٔ دیگری که نص شرعی بر آن موجودباشد تطبیق گردد ،مشروط بر اینکه در میان هردوحادثه علت مشترک وجود داشته وازهمدیگر فرق نداشته باشند. ویکی از شروط قیاس اینست که درمورد آن(فرعی ) که بر (اصل ) قیاس میگردد باید نص موجود نباشد.

درینجا عمل نجاشی رضي الله عنه(اصل )گردانیده شده، ومشارکت درحکومت دیموکراتیک درعصر حاضر (فرع ) گردانیده شده ،وعدم تنفیذ شریعت علت مشترک درمیان هردوحادثه گردانیده شده است، ولی این قیاس ازآنجهت درست نیست که درینجا درمورد (فرع ) نصوص صریح وجود دارند ،وآن حکم میکنند که هرکسیکه شریعت را (حَکَم ) یعنی مرجع داوری نشمارد، مسلمان نمی ماند، چنانچه الله جل جلاله می فرماید: ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ سورة النساء/ ۶۵.

ترجمه: (اما نه !به پروردگارت سوگند که آنان مومن به شمار نمی آیند تا تو را در اختلافات ودرگیریهای خود به داوری نطلبند وسپس ملالی در دل خود ازداوری تو نداشته وکاملاً تسلیم (قضاوت تو ) باشند).

همچنان الله متعال ﷻ می فرماید : ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَن يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴾ سورة النساء /۶۰.

ترجمه: (ای پیغمبر ! آیا تعجب نمی کنی از کسانیکه می گویند که آنان بدانچه بر تو نازل شده وبدانچه پیش از تو نازل شده ایمان دارند ولی میخواهند داوری را پیش طاغوت ببرند ، (وحکم او را بجای حکم الله بپذیرند ) و حال آنکه بدیشان فرمان داده شده است که (به الله ایمان داشته و ) به طاغوت ایمان نداشته باشند ، وشیطان می خواهند که ایشانرا گمراه (و از راه حق وحقیقت بدر کند ) .

پس چگونه جائز خواهد بود که درموجودیت نص شرعی به قیاس عمل نماییم .درحالیکه قاعده اصولی اینست که با موجودیت نص قیاس درست نیست.

۳- درزمانهٔ نجاشی (رض ) شریعت مکمل نشده بود ،و نظربه بُعد مسافت ونبود وسائل مواصلاتی احکام شرعی همه روزه ویا درهر هفته وهر ماه به او نمیرسید ،او فقط به عملی نمودن احکامی مکلف بود که به او رسیده بودند . اما اکنون که شریعت مکمل گردیده وهمهٔ احکام شریعت به ما به یکبارگی رسیده اند ، پس شیفتگان ودلباخته گان دیموکراسی چگونه شریعت مکمل موجود را گذاشته وبه عمل زمانی استدلال می کنند که شریعت تا آنوقت مکمل نگردیده بود ؟

## شبهه سوم – تسمیۀ دیموکراسی به شوری

عناصرسیکولر وغربگرا که درتلاش پخش وتنفیذ دیموکراسی درجهان اسلام هستند بهدف فریب دادن مسلمانان دیموکراسی (بی دین ) غربی را به نام ( شورای ) اسلامی مسمی میگردانند. وبصورت دروغین تبلیغ میکنند که دیموکراسی درحقیقت یک شکل مترقی شوری اسلام است،وبا عملی کردن آن نظام شورایی اسلام در عمل تطبیق میگردد .

امریکا ومتحدین صلیبی اش زمانی که افغانستان را با بمباردمان شدید وبا همکاری گروهای ازمنافقین وجواسیس داخلی تسخیر کردند ،وبعداز کشتن ده هاهزار مسلمان خواستند یک حکومت غلام وبی صلاحیتی رابر افغانان تحمیل کنند، وازطریق آن دلائل جواز اشغال افغانستان را فراهم کنند ،برای رسیدن به این هدف درینجا نیز بوق وسرنای دیموکراسی رابه صدا درآورند ،و چندتن خائن ووطنفروش رابا چند تنی از افغانان سیکولر راکه با خوداز غرب آودرده بودندیکجا باکمونستان ورفقای ملیشهٔ شان باریسمان دیموکراسی در طبیله بستند ،وهمه را دردر مجلسی بنام (لویه جرگه ) زیرخیمهٔ که همین اشغالگران آنرا قبلاً نصب نموده بودند جمع نموده وباکمال وقاحت بالای سر آنها آیهٔ متبرکه ﴿ وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ ﴾ سورة الشوری /۳۸ را نیزنوشتند.

ولی دیموکراسی هیچگاه بدادن نام شوری به آن اسلامی نمیگرد د، چنانچه شراب بانام گذاری (مشروبات روحی )، وزنا بانام (تقاضای جنسی ) حلال نمی گردد .

فرق میان (شورای اسلامی ) و(پارلمان دیموکراسی ) مانندفرق میان (حق )و(باطل )میباشد ،که بعضی ازین فروق را به شکل ذیل یاد آوری میکنیم:

## فروق میان (رأی گیری پارلمانی) و(شورای اسلامی)

فرق اول: شوری اسلام میان مسلمانان مؤمن ، موحد ومتابعین شریعت انجام میگیرد، درحالیکه (رأی گیری پارلمانی )میان اعضای مجلسی برگذار میگردد که درآن مسلمان، هندو ، مسیحی، یهودی، کمونست وملحد همه به طور یکسان حق رأی دادن دارند وفیصله درآن براساس (حق بودن) و(قوت دلیل) نه، بلکه براساس (اکثریت آراء) صورت میگیرد

قرآن کریم وقتی آیت شوری را ذکر می کند ،در آن شوری را بحیث وصف مؤمنانی یاد آوری میکنند که آنها به الله ﷻ ایمان آورده اند ،وبه اوتوکل می نمایند ،از گناهان وکارهای بی حیائی خودرا نگهمیدارند ،وزمانیکه به غضب آیند بخشش میکنند ، وآنانی که دعوت پرودرگارشانرالبیک گفته واقامهٔ نماز میکنند ،کارشان بر اساس شوری اجراء میشود ، وازآنچه که الله ﷻ به آنها داده خرچ میکنند ، واگر بر آنها تجاوز صورت گیرد انتقام میگیرند (از خود دفاع می کنند ) .

